مؤلف: خیر محمد ساد

پیرکرور سوري د ولس سوه پنځوسم تلین
۱۵٤ - ۱٤۰٤ هـ ق

# لرغوني آریایان

د پښتو څېړنو بین المللي مرکز
۱۳۶۳ کال



# لرغونی آریایان

مولف: خیر محمد ساد




دافغانستان دعلومو اکاډمی

دپښتو څیړنو بین‌المللی مرکز

۱۳۶۳

# فهرست

| سرلیك | مخ |
|---|---|
| سریزه | الف |
| دکتاب په باب خبري | I |
| لومړنـــی ګډ نظـــام | ۱ |
| نیو لیتیك | ٤ |
| دکرنی او مالداری پیـــل | ٥ |
| دکورونو جوړښـــت | ۱۰ |
| اجتماعـــی او اقتصادي اړخ | ۱۲ |
| مشـــري او ریاســـت | ۱٤ |
| کلتـــور | ۱٥ |
| هنر او انځـــور ګـــري | ۱٦ |
| دود او مـــذهـــب | ۱۷ |
| داریایانو مهاجـــرتـــونـــه | ۱۹ |
| لومړنی اریایی ټاټوبـــی | ۲۱ |
| په اریایی ټولنو کی دتولیدي روابطوبدلون | ۲٤ |
| یو مهم اجتماعی او حیاتـــی بدلـــون | ۲۷ |
| دکـــالیـــو تولیـــد | ۳۱ |
| دشخصی او خصوصی مالکیـــت پـــرمختګ | ۳٥ |
| داریایانو کلتوري اړخ | ۳۸ |
| دمیترایزم تصوفـــی اړخ | ٤٤ |
| دمیترالما نځنـــی دمذهـــب عـــوامـــل | ٤٥ |
| ویدي کلـــتور | ٤۷ |
| دویدي عصر مذهبـــی خـــوا | ٤۹ |
| سومـــا ـ هـــومـــا | ٦٥ |

# سریزه

زما د دی کتاب عنوان د «لرغونو آریایانو ژوند»
دی ، مگر زه چی څومره فکر کوم زما دغه څیړنه په دې برخه کی
نیمگړې او نا قصه ده، ځکه چی د ژوند کلمه دو مره پراخه معنی
او جامع مفهوم لری چی د یوې ټولنی په کلتوری او یا مدنی حالا-
تو باندې هراړخیزه څیړنه د یوه شخص له توانه ډیره پورته او ډیر
مشکل کاردی بلکی د یوی موسسی او څو کسانو په قدرت او صلاحیت
پوری اړه لری .

دیوی ټولنی د ژوندانه د هراړخیزو څیړنو له پاره نور ډیر علوم او په
هغو علوموکی پاخه او کره څیړونکی په کار دی . یادا چی دیوی ټولنی د
تمدن په نورو اړخونو لکه : تاریخ،جغرافیه ، نژاد پوهنه ،بشرپوهنه
، ټولنپوهنه ، اقلیم پو هنه او لرغون پوهنه ، سیاست ،
ژبپوهنه ، فلسفه او داسی نوروبرخوکی باید دمخه دپوهانو له خوا
پوره څیړنی شوی وی او بیا د دغوپخو مواد و په بنسټ د یوې ټولنی
په تمدن او کلتور باندې علمی او کره څیړنی وشی . له بله
پلوه دغه څیړنی له هره پلوه د هرراز غرضونو او په ویاړونو
دخیتی اچولو له مرضه بچ پاتی شوی وی . مگر متاسفانه زه چی له
یوې خوا د تاریخ په علم کی دومره وارد نه یم او له بله پلوه
زموږ د لرغونی تهذیب او تمدن لویه ذخیره په هغو لرغونو ژبو کی
خوندې ده چی له بده مرغه په افغانستان کی تراوسه پورې د
دغو ژبو د تحلیل او زده کولو له پاره هیڅ اقدام نه دی شوی
او نه یی زموږ په هیواد کی د تدریس او زده کړی کومه موسسه
او یا مرکز شته چی مرسته ورځخه وغوښتله شی .

که څه هم دغرب مستشرقینو لا ډیر پخواد بشری تمدن د منابعو
او ټاټو بو په څیړنه پیل کړی دی او په دې برخه کی یی ستر بریا-

لیتوبونه هم ورپه برخه شوی‌دی،، او دآریاییانو د پخوانیو ژبو لکه: سنسکرت ، اوستا او پهلوی ژبوپه لوستلو بریالی شوی دی او زموږ دلرغونی میراث اثاریی پخپلو ژبوپه یوڅه اختلاف سره ترجمه کړی دی . مگر بیا هم باید په ډیرتاسف سره ووایم چی دغه په ژوند یو ژبو ترجمه شوی آثارلاتر اوسه پوری زمونږ په ژوند یو ملی ژبو ترجمه شوی هم‌نه دی.

( هر څوك داخبره تائید وی‌چی دیوی موضوع او خصوصاً دځو زرو کالو پخوانیو ټولنو دتمدن اوږژوندانه د حالاتو معلو مولو له پاره باید د استفادی بی شمیره‌علمی آثار او منابع موجود وی چی دهغو ټولو د کتنی په رڼا کی‌دیوې کانکریتی عقیدې په بنسټیو پوخ اوعلماً کره اثر خپلی ټولنی‌ته وړاندی کړی .

له بله پلوه زه پوره ایمان لرم‌چی زموږ د لرغونی میراث دغه پاتی شونی آثار دهمدې تاریخی‌خاورې مولود دی او وروسته یی رڼا ختیځ او لویدیځ ته رسیدلی اوهلته دنورو تمدنونو او کلتورونو سره گډ شوی او هغه نورکلتورونه او تمدنونه یی تراغیزی لاندې راوستی دی چی د دوی په گاونډیتوب کی پراته وو او ډیر څه یی ورڅخه اخیستی هم دی .زموږ د لرغونی تمدن پخوانی کنډوالی لاتر اوسه پوری د توجه په انتظار کی د تخریب په رنځ خپل کرغیړن عمر پایې‌ته رسوی اوهیڅ پاملرنه ورته نه ده شوې .یو څیړونکی برسیره پر دغو تیرو موادوډیر نورو وسایلو او د نژدی څخه کتنو او مطالعاتو ته محتاج دی اودغه کار پوره وخت او ډیر وسایل غواړی چی زما دغه برخه هم نیمگړی‌ده. بیاهم ددې ټولو نیمگړتیاو سره یوځای دهغی مینی او علاقی له مخی‌چی‌د گران هیواد له تاریخ سره یی لرم ، له ډیره وخته راهیسی می‌داعزم درلود چی د خپل وطن او ښاغلو نیکونو د ژوند حالات تریوحده‌پوری‌وڅیړم . دډیرې مودی راهیسی می‌چی په‌دغه برخه کی هر څه مخ ته راتلل لوستل می‌او یاداشتونه می اخیستل . څومره اثار چی می‌پیداکړل دهغو په‌رڼا کی په لنډه توگه زما د خپلو مطالعاتو دغه لنډه‌نیمگړې نتیجه ستاسو حضورته وړاندی کیږی .

په‌دې کتاب کی څرنگه چی دلرغونو اریایانو د ژوندانه څیړل هدف وو، نودهغی نیتی‌څخه د آریایانو دژوند دحالاتو په څیړنه پیل‌شوی دی‌چی دوی دژوو دفردی ژوند له‌حالاتو څخه بیخی لری وتلی او د اجتماعی ژوندانه دتکامل په سیر کی یی دځانونو له‌پاره په مصنوعی

توکه دالاتو ، افزارو ، کور جوړولو اولباس په جوړولو پيل کړيدی چی‌دغه مرحله په تاريخ کی د لومړی‌اشتراکيت يا طايفه يی ژوند په نامه ياده شوی ده .

د دوی دهغه وخت دحالاتو څخه صرفنظر شوی دی چه تقريباً په حيوانی نړی پوري اړه‌لری دآريايی‌قبايلو دلومړنی ټاټوبی ياد پيدايښت دمرکز سوال دټول بشر دپيدايښت‌په سيمه يا سيمو پوری اړه‌لری، چی دلته زمونږ دبحث‌د موضوع څخه د باندی خبری دي . مگر دلومړنی اشتراکی‌دوري په عصرکی ټول پوهان دا حقيقت تائيد وی‌چی اوسنی افغانستان‌يوازی د دوی لومړنی مسقط الراس نه دی ، بلکی دلته ځای‌پرځای ددوی نه مخکی نور غير آريايی قبايل هم ميشته وو .

اريايی قبايل د سوونو کلونوپه موده‌کی د اموسيند د شمالی برخو څخه جنوبی برخوته راغلی او په‌دغه سيمه کی‌يی استوگنه غوره کړي ده . دوی دغه خلك په خپل‌نوم ( آريانا ) يعنی ( دآريايانو مملکت ) مسمی کړ . مگردا خبره‌يوسپين حقيقت دی چی دايران او هند آريايان له همدي سيمی څخه تللی‌دی ، د زمانی په تيريدو سره د دوی ځينو قبايلو ددي ځای څخه هم‌مهاجرت وکړ او دختيځ ، لويديځ او جنوب خواته لاړل .

له بله پلوه څرنگه چی‌آرين‌او آريا « کلمی » دسپين پوستی توکم اکثره برخه تشکيلوی اودتمدن‌له مخی دنړی په تاريخ کی ډيرلوی رول لری ، نود ټول آرين نژاد اودتمدن بلکی دتمدنونو څيړل ډير پراخ او لوی کاردی چی په بشپړډول‌سره‌يی څيړنه دلته هيڅ‌ضروری نه ده. په دي کتاب‌کی يو ازی دهغوآريايانو دژوند انه په حال‌په لنډه توگه رڼا اچول شوی‌ده چی‌په همدی اوسنی افغانستان کی پاتی شوی او ترننه پوري هم موجوددی چی موږ دمرکزی آريايانو په نامه بللی دی . کوم قبايل چی‌دلرغونی آريانا د حدودو څخه وتلی دی ، لکه دماد او پارسوا قبايل چی‌لومړی د جنوب غرب لورته تللی اوبيا دغرب په لور روان شوی اوداوسنی پارس سيموته رسيدلی دی. يالکه دمهابها راته قبايلوگروپ‌چی‌مجموعاً پنځه قبيلی وی‌او دختيځ اوجنوب ختيځ په لور تللی اود او سنی هند اکثره نفوس تشکيلوی. ددغو قبايلو د کلتوری او مدنی حا لاتو دڅيړلو څخه هم صرف نظرشوی دی .

لـه بلې خـوا څرنګه چـې مادویدیسرود دونو او اوستایی متونو دتـر
جمو څخه استفاده کړی ده اوپخپله راساً په دغو ژبونه یوازی زه بلکی
دافغا نستان پـوهان هیڅوك هـم نه پوهیږی نو ماد دغو ژبو د اصطلاحاتو
او نومونو دتحلیل او ګرامری قواعدوسره هیڅ تماس کړی نه دی اوددغو
ژبو لنګویستیکی تحلیل او څیړنه میپریښې ده زه هیله لرم چی لـه دی
وروسته بـه صلاحیت لرونکی مقا مـات او علمی موسسی خپله کلکه
تـوجـه دې خواته واړوی او زمونږدلـر غونـی میـراث د دغو علمـی
ذخیرو دڅیړنی له پاره داسی تربیوی او علمـی مراکـز جوړ کـړی چـی
دغـه لـرغونی ویاړونه په خپلـوملـی ژبـو ترجمه کړی اوپه هراړ
خیـز ډول یی وڅیـړی . بنایی پـه وروسته کلونو کی دپوهنتون د
ادبیاتو او بشری علومو په پوهنځیکـی دلرغون پوهنی ، لرغون کیند
نـی ، اوستایـی ، سنسکـریت او پهلوی ژبـو او متونو دتدریس ځا
نګړی تدریس څانګی جوړې شـی اوزمـوږ د لرغونی تمـدن د تاریـخ
نیمګړ تیاوی بشپړی شـی .
پـه دې کتاب کـی یـوازی دوه دورې په لنډ ډول څیړل شـوی دی
۱ـ هغه دوره چی دوی په کلتوری لحاظ ډیر وروسته پاتی وو او پـه
طبیعی اجتماعی اصولویی ژوند کاوه اجتماعی طبقات او کاستونه په کی نه
وواو د اکثـریت ژوندیی کـوچیانی بنـه درلوده .
۲ ـ هغه دوره چی په دویکـی دشخصی ملکیت مفاهیم منځ ته
راځی . اجتماعی طبقات ظهور کـوی اوپه کلتوری لحاظ پرمختګ کـوی.
دې دوری تـه موږ ویدی عصروایوڅدا دوره ترهغه وخته پـوری دوام
کـوی چی تـر څـو پـه ذهنی لحاظد دوی په افکاروکی یو ریفورمیستی
تحول راځی او دزردشت د دین پیداکیدل او د مذهبـی ریفورم سـره
تصـادف کـوی .
پـه دویم ټوك کـی د زردشـتدیـن او د لـرغونی آریانا او پـار ـ
تیانیا معضلـه جغـرافیایی بـرخـه راځـی او هلته بـه دغـه موضوع
وڅیړ له شـی چـی دا وستایی دینجغرافیایی نومونـه اوس پـه څـه
نـامـه یـادیـږی .
ماد خپلو معلوما تو او عقایدو له مخیځـای پرځای جغرافیایی نومونه یـو
څـه بیان کړی دی او دسیمی ټاکلیـی یوازی زماشخصی عقیده ده .
دمحترمو لوستونکو څخه هیله کیږی که چیری کومه غلطی په کی پیښه
شوی وی د مهربانی لـه مخی دیزماپام ورته واړ وی.
په در ناوی .
خیرمحمد سـاد

# د کتاب په باب څو خبری

دپښتو ټولنې نودبین‌المللی مرکزله پاره ډېرې خوښی ځای دی چې د دغـه قیمتی اثرپه خپرولو سـره د خپلو نشریاتو په باارزښته زیرمه باندې یو بل کتاب هـم ورزیاتوي . اریایی ټوکمونه (چی‌کله کله د اندو ـ اریایی او کله هم داندو-ایرانی په نامه یادیږي) چی داد اندو اروپایی ټوکمونو له لړۍ څخه یوه‌ډېره مهمه څانګه ده‌دهغو څېړنه‌زموږد هیواد والوله پاره خاص اهمیت لري، ځکه چی له یوې خوا زموږ دلرغونی او تاریخی هیواد زیات سره ورونه‌ټوکمونه : پښتانه ، تاجیك ،بلوڅ ، ساك ، پامیریان ، اورمړ ، پراچګان‌اوکور دان اساساً همدغې یوې څانګی ته منسوب دي اوله بلی خوا دلرغونتیا اوهرې خواته داریایانو دمهاجر تونو لرغونی تاریخ به په سیمه کی‌دومره سابقه اوعمومیت ونه لري ، لکه څومره چی زموږ هیواد دهغوشاهددي .

دسیـمی پـــه لحاظ هـم زموږلـــرغونـی هیـواد دلـــر غـو نو اریایانو دتاریخی استوګنی تقریباً دزړه حیثیت لري . که ډېر لرې‌لاړنه شـو ، نوویلی شو چی دقبل المیلاددوه زره کلونو څخه ترننه پوری د دغوبی شمیره ټوکمونو ټاټوبی په لویدیځ کی دتورسمندرګـــی لـه غاړ و څخــه ، پـــه ختیځ کـــی‌دچین ترپولو ، په شمال کی دسیر دریا له حوزې څخه په جنوب‌کی دفارس تر خلیجه او دهند دنیمی وچی د سمندری غاړوپوری‌پراخه ساحه‌ګنله کیږي .

تاریخ شاهددی چی اوسنی ایران‌اود هند نیمی وچی ته‌اریایی ټوکمو نو پـــه عمده توګـــه له همدغه‌ځایـــه کـــوچ او لیږ دکړې او د تاریخی باختــر یا ، هندوکش اراخوزیا ، اریا (هرات) ،بولان ، کورمی او خیبر له وادیو ، درو اوتنګیو څخه داوږدو پیړیوپه بهیر‌کی تیرشوي او په ایران اودهند په نیمه وچه کی‌میشته شوي اویوه دیادونی وړبرخه یی په همدغه زاړه ټاټوبی کی پاتی‌شوې ده چی ترننه پورې په کـــی میشته دي . په دې باب ډېر موادپه‌همدغه کتاب کی راټول شوي دي‌چی دلوستو نکو علمی تاریخی‌تنده ماتولی شی .

دغو ټوکمونو دبشرې تاریخ په نړیوال کلتورکی ستررول لوبو لــی دي ، نوله دې امله دهغوی دژوند ،تمدن ، کلتور اوتاریخ مطالعه زموږ دهیواد والوله پاره ډېر اهمیت لري.

ددغه ستر ګارد عهدې له درانده‌باره ځوا نیمرګ محقق اروابناد خیر محمد ساد په ښه شان سره وتلی دې‌او په دې برخه کی یی دغه ارزښتمن کتاب زموږ ټولنی ته له خپله مرګه وروسته په میراث پریښی دی .

دامیر کروړ دبین‌المللی سیمینارمحترم‌علمی کمیسیون اوسکرتریت‌چی کله ددغه اثر زیات ارزښت درك کړسپارښت یی وکړ چی هغه باید د پښتو څیړ نوبین‌المللی مرکز له خواخپور شی . موږ هم په ورین تندې اوپه خوښی سره ددغه سپارښت هرکلی وکړ اودادې داریایی تاریخ مینه والو اودهیواد دلرغونی دوداوکلتورعلاقه مندانو ته یی په ډیره مینه وړاندې کوو .

دلته باید یاده شی چی ددغه کتاب په خپرو لوکی دڅیړ ونکی مر ستیال عبداللطیف طالبی زیات زیارګاللی دې، نوپه خپل واردهغه ددغی زیارګالنی څخه ډیره مننه کوم .

**سر محقق دوست شینوارې**

**دپښتو څیړ نودبین‌المللی مرکزرئیس**

# لومړی ګډ نظام

په اجتماعی حالاتو کــی داقتصادی‌اوحیاتــی مسایلو دتحول او بدلون سره ځینی داسی دورې راغلــی دی‌چــی په تاریخ کی په خاصو نومونو یــادیږی ، چی دهغو څخه یوه خاصه دوره‌یی دمور مشری ( موروا‌کی ) دوره ده . دا دوره هغه وخــت تــه ویلــه کیږی چی آریایانو دتاریخ‌په یــوه خاصــه اجتماعــی او اقتصادی‌دوره کــی ژوند کاوه . دوی هغــه وخت کرنه او څاروی پالنــه دواړه‌نــه پیژندل اوپه طایفه یی اوډلهــ ایزه توګه یی ژوند کــاوه . د دوی‌د استحصال منابع ټول طبیعــی وو اوحتی داستراحت اوستر او اخفالــه پاره یی هم د طبیعی غارونو ، کوډــ غالــو او سمڅو څخه کار اخیست .دوی د ذهنی رشد لــه پلوه هم په ابتدایی حالــت کــی وو . د طبیعــی‌غلــو ، دانو ، میوو او دوحشی حیو اناتو ، ماهیانو او مرغانو دښکارپه‌غوښونویی خپلی ګیډی مړولــی اولوږه یی دفع کــوله . د ښکار ، میوو اونــورو خوراکی موادو منابع دخــاص فــردنه بلکی د ټولو خلکو شــریك‌اوګډ مال بلــل کیــده .

پــه دې دوره‌کی دوی دواده پــه بــرخه کــی د پخوانی حالت نــه یو څــه ترقی کړې وه او پخپله طایفه‌کــی به‌یی واده نه‌کاوه : ځکه‌چی پخوانی واده منفرد حالت نه درلود. بلکی واده هــم اجتماعی او ګډه بڼه درلوده . دوی بــه دهماغــی لــویی‌قبیلی پــه بله طایفه کی واده‌کاوه چی دغه دوه طایفی به‌یوتر بله‌خپلوانــی بلل کیدی . یاپه بل عبارت د یوې طایفی نجونی او هلکان به دبلی‌خپلوانی طایفی بالقوه او په پای کی بالفعل ماینی اومیړونه ګڼل کیدل(۱)چی د کلتور دی‌مرحلی ته په تاریخ کــی ایګزو ګامی Exogomy یــا ( دباندی خیښنی ) ویله کیږی. ددې دوری نــه مخکی مرحلــی تــه‌چــی په طایفه کی دننه به ودونــه کیــدل انډوګامی ( ۲ ) ( Endogomy ) ویل کیږی .

## دی دورې ته ولی دمور مشری دوره‌ویــل کیږې ؟

داځکه چــی داجتماعی تاریخ پــه‌دی مرحله کــی د اوسنی عصــرپر خلاف ښځود نارینه وسره دغذایــی‌موادو پــه راټولو کــی سمه برخه اخیسته . مګر ددغو موادو دسمبالښت‌او سمون وظیفه یی دنارینه وڅخه زیاته وه . پــه‌دې دوره کــی پــه نسبتاً وړه اندازه دکارویش منځ‌ته

(۱) زمینه تکامل اجتماعی : (۳٤)مخ
(۲) تاریخ جهان باستان (٦۱) ــ (٦٥) مخــونــه

راغلي وچې داويش دواړه او لوی‌په اساس نه بلکې دجنس په لحاظ رامنځ ته شوی ؤ . ځکه چې نارينه‌وبه اکثره دښکار وظايف سرته رسول او دميوو ، دانو ، او دنباتاتو بيخونو راټولول دښځو په غاړه وو له بلې خوا کله چې دوی داوڅخه استفاده وکړه ، داور بلول ، رڼاکول او بياور باندی دغذايي‌موادوپخول دښځی په غاړه وو . دښکار دغوښو دساتنې‌او سمبالښت صلاحيت‌يوازې دښځوپه لاس کې ويا په لنډه عبارت په دغه دوره‌کی ښځې‌اقتصادی مشرتوب او صلاحيت درلود چې دهمدی صلاحيت پربنايی ښځينه‌جنس ته يو قدرت او قوت بخښلی و ، او دنارينه وسره سم ، بلکی‌اوچت مقام او موقف يی نيولی ؤ .

## دمولدو قوتونو تکامل

په آسيا او اروپا کې دجيولوجيکی‌او اقليمی تغيراتو له کبله يوه ډيره سړه دوره راغلی ده چې دبشر بلکې دحيوانی نړۍ په ژوند کې يی‌هم ستر بدلون راوست . دا دوره‌پوهان دميلاد نه مخکې ( ۱۲۰۰۰ ) کاله پخوا ټاکی ( ۱ )، چې ددې سړواويخنی له امله ډير لوی حيوانات يامړه شول اويا د شمال لورته‌وتښتيدل . دلته ددې موضوع‌تفصيل اوتشريح زمونږ مقصد نه دی، بلکی‌دهغو تغيراتو يادونه کوو چې ددغی بشری کتلی په ژوند کی يی بدلون‌راوست .

آريايان هم مجبور شول چې دغرودلمنو او سړو ځايونو څخه مهاجرت وکړی او دتودو سيمو خواته لاړشی‌دوی دغذانوی منابع و موندل او د لويو حيواناتو د ښکار په عوض يی‌دمرغانو ، ماهيانو او نورو وړو حيواناتو لکه هوسيو ، ځنګلی وزو،پسونو ، غوايانو او داسی نورو حيواناتو په ښکار پيل وکړ .

آريايانو دمرغانو او حيواناتودښکار له پاره دنيزی دوسلی‌رنه پرمختګ وکړ اوغشی او ليندە يی‌اختراع کړل . نيزه چې د دوی لومړ نی وسله وه هم د دفاع اوهم يی‌دښکار له پاره تری کار اخيست .

داقليمی شرايطو دښه والی په اثر هغه يخچالونه او رشونه چې دسړو په دوره کی منځ ته راغلی‌وو ، د ډيرو کلونو نه وروسته‌او به شول او د دوی په غرونو اوسمه کی ګڼ ځنګلونه راوټو کيدل . په دې ځنګلونو کی دوی‌نه شول کولای چې واړه حيوانات لکه هوسی او داسی نور مرغان په نيزه‌وژلی شی دليندی اوغشی اختراع چې له ورايه يی حيوانات وژلای‌شول يولوی برياليتوب ؤ .

غشی اوليندە دهغه وخت ( دميلادونه مخکی شپږ زرو ۶۰۰۰ کالو

(۱) تاريخ جهان باستان ـ لومړی‌ټوك ٦٦ مخ

پوری ) عمده اوبریالی وسلـه وه.دهغه وخت غشی او لیندې دار کیا-
لـو جستانو او لرغون پوهانو دهغوپـه اثر موندل شوی دی چـی دلر ګکی
اویا کړکی (دورمی) په سرکی بـه یوه تیره سرې او کلکه بکره تومبل
شوی وه چـی له ورایه به یی خپلدښکار هدف پـری ویشته .

آریایانو داور له کشف وروسته یو بل موفقیت وګاټه او هغـه دیـوه
وحشی حیوان (سپـی) ایل کـول وواو دا لومړی حیوان دی چی دوی ایل
کړی او اهلی کړی دی . سپـی پـه ښکار کولو کی د دوی سـره ډیـره
مرسته کوله او هغه حیوانات چیپه منډه ډیر ګړندی وو دسپی په مرسته
یـی نیول او ښکار کـول .
دسپی څخـه دښکار دنورو دارونکـوحیواناتو څخه ددفاع اوحتی دباروړلو
لـه پاره هم کار اخیستل شوی دی.

**نباتی غذا ګانی یا دغذایوه بله منبع**

بر سیره پر ښکار دوی دځنګلیمیوو ، ماهیانو ، صدفونو ، دشاتـو
مچیو ، ډینګریو (مرخیړیی) او نورونباتی شیانو څخـه هم په عمده توګه
استفاده کـولـه .
آریایانو ترهغه وخته پـورې چـیدکلالـی په اختراع بریالی شوی نـه
وو ، خپلی اکثره غذاګانی دوریتولواوکباب په بڼه پخولی او استفادهیی
تری کـوله . غوښی به یی په لښتواوډکو کـی وتومبلی او اورته به یی
ونیولی ، تر څـوبـه چی پخی شویاواستفاده به یی ترې کـوله . غوښی
به په مساویتوګه ویشل کیدی اوپه تیږ وبه یی ورته اچولی.
دوی په همدی شان سره دغنمو، اوربشو اونورو حبوباتو دانیهم چیپه
ځنګلی توګه بـه راټو کیدلـی ویپـه اور و ریتولـــی .
کله چـی ډیره موده وروستـه دوی بغری او مولی اختراع کړل اودحبو-
باتو دمیدهکوله کاریی تری واخستونومیده اوړه به یی دتیږی دتبی دپـا
سـه اچول او پخول بـه یی .
البته دجغرافیایی موقعیت لـه مخیدهرې طایفی دخوراك او تولید وسـا
یلو او منابعو یو تربله یوڅه توپیردرلـود . ځینی طایفی په ځنګلونـو
کـی لالهانده ، ځینی دخوړونـو اوسیندونو په غاړوکی بوختی اوځینی
یـی دبحیرو تر څنګه میشتی وی .
هغه طایفی چـی دخوړ ونو او سیندونو په غاړو او څنډوکی وی دماهیا-
نـو او مرغانو ښکـار ددوی عمـدهمشغولیت او دتغذیی منبع وه .دوی

به په مساعد اقلیم کې خپل استوګنځی دسیندونو په غاړه دلرګیو څخه جوړول اوپه همدی دوره کې‌دوی دخپلو ودانیو له پاره دلرګی څخه پوره استفاده کړی ده اوپه‌استوګنځیو کې دلاړو او تیرانو په توګه ورڅخه کار اخیستی دی .

له بلی خوا داهم باید وویل شی چی‌دهر ځای داقلیمی او جغرافیایی شرایطو سره سم دوی خپل کورونه‌او استوګنځی جوړ کړی وو ، ځینو دخیرو ونکو حیواناتو ددفع ، ځینودګرمی ، ځینودبادونو او سړوڅخه دځانونو دساتنی په منظور خپل‌تاتوبی ودان کړی وو . سره له دی بیا هم یوزیات شمیر خلکو دهماغوطبیعی سمڅو څخه استفاده کوله دمخه مو وویل چی‌په دی دوره کې‌ددوی تر منځ هر څه شریك اوګډوو مګرسره له‌دی اشتراکه بیاهم دهری‌طایفی غذایی قلمرو یوازی دطایفی دغړو ترمنځ شریك واو دبلی طایفی‌دافرادو دمداخلی نه‌یی خپله غذایی سیمه په کلکه سره بچ ساتله‌اوپه‌ګډه به‌یی ورڅخه دفاع کوله .

**دنیولیتیك** New lithic دوره

ددی دورې نه مخکې دورې چې‌موږ ورسره ډیره علاقه نه‌لرو اونه زموږ دڅیړنی اصلی موضوع ده ، ځکه چی په هغو دوروکې د دوی ذهنی او مادی قدرت ډیر لږؤ اوپه‌ډیره ابتدایی بڼه یی ژوند درلود ، دتمدن آثار او بیلګی یی هم هیڅ‌پاتی نه دی اوکه په‌کوم ځای کې پاتی وی ، هغه هم ډیری نادری اودنشت سره سمی دی نوله دی‌کبله موږته دغه دوره ډیر اهمیت لری‌او نسبتاً په تفصیل سره به پرې خبری وکړو .

دا دوره دپخوانیو دورونه داتوپیر لری چی پخوا تیرې په طبیعی توګه استعمالیدی او دوی دالاتواو اوزارو کار تری اخیست‌او هیڅ صنعتی اړخ په کی دخیل نه‌و . مګرپه دی دوره کی دوی یوه تیره پر بله سولوله او د خپلی غوښتنی‌وسله اویا بله اله به‌یی تری جوړوله چی دا سولول به عموماً دتیره کولو په منظور وو .

ددې دوری تغذیه هم اکثراً په‌ښکاراو ماهی خوړلو روانه وه اود اوبو مرغان به یی‌هم ښکار کول .

دآمو دسیند په غاړه دشوروی اتحادد یو لرغون پیژندونکی عالم له خوا دیو داسی ژوند آثار او بقایاکشف شوی دی چی په ښکار او ماهی نیولو بنا ؤ ، چی داتمدن دپوهانو له خوا د کلیتمینار **(Civilization of Keletminar)**

(۱) په تمدن یادیږی . ددی‌تمدن آثار دکرونو لوجیکو محاسباتو

---

(۱) تاریخ جهان باستان ٦٩ مخ .

په اساس دمیلادنه دمخه دځلورمیزریزی دپای نــه پیل او د دریمــی زریزی ترپیل پورې رسیږی .

دوی دښکار له پاره راز راز وسایلاو دامونــه استعمالول . دحیواناتو پــه لار کی به یی خدنګونــه جوړول‌چی پوښل شوی بــه وو او حیوانات به په‌کی واویدل او دوی به‌رانیول‌دونو ډډونه بــه یی پــه داسی بڼه ایښی وو چــی په لږ تماس بــه پرحیوان را ولویدل او هغــه بــه یــی لاندې کړ . کېنــد اوجال بــه یــی‌دمرغانو او هوسیو دنیولو لــه پــاره استعمالول . همدا راز دوی پــه ښکارکــی‌دو مــره مهارت پیداکړی ؤچــی‌د حیواناتو دغولولــوله پاره بــه یــی‌دحیواناتو پوستکی اغوستل اودحیوا-ناتوپه شیر رمباړی به‌یی له خولــی‌ویستلی اوهغوی‌بــه یی‌دښکار لــه پاره‌ځان ته‌را بلل.

دماهیانو دنیولو له‌پاره به‌یی‌پــه‌اوبوکی بندونــه اچول‌او یابــه‌یی د اوبو مجرابلی خوانه‌اړولــه اودنیزی‌توکــری او خنجك نــه یــی هــم استفاده کوله .

## دکرنی او مــالداری پیل :

پــه هغــدی دوره کــی کرنی اومالداری په ابتدایی توګه رواج وموند. دوی لومړی دحیواناتو په اهلی کولوپیل وکړ . دا په قطعی توګه معلومه نه ده چــی دوی په څه ډول بریالی‌شول چــی څاروی اهلی کړی .
پــه دی برخه کــی دپوهانو ترمنځ‌اختلاف دی او هریویی په بیلو ډولو نــو تشریح کوی ، مګر بیا هم اکثره‌پوهان پــه دی عقیده دی چــی دوی دښکار په ترڅ کــی پــه دی بریالی‌شول چی حیوانات اهلی کــړې (۱).
ځینی وایی چی دوی دښکار په ترڅ‌کــی کله چــی حیوانات ښکار کړل نــو واړه بچی یی ونیول او هغه یی‌وروزل او اهلی شول . مګر ځینی‌بیا داسی عقیده لــری څرنګه چی ښکارهــم په انفرادی اوهم پــه اجتماعی او ډله‌ایز ډول کیده ، نو دوی‌به‌کله ناکله دحیواناتو یوه لویه رمه پیداکړه او دطایفی ټول خلك بــه‌پسی ووتل . څاروی به‌یی په یوغار تنګ ځای اویا د دری په کوم تنګی‌کــی محاصره کړل او یو زیات شمیر حیوانات بــه‌یی ونیول او خپلو استو ګنځیو ته به‌یی راوستل او یــو کلك شپول به‌یی ورته جوړ کړ چی‌داشپول به پــه حقیقت کــی د دوی د ښکار د ذخیری‌و دساتلو ځای واود ضرورت په وخت کی به‌یی‌ورنه استفاده کوله . څرنګه چی دڅارویوشمیر بــه‌زیــات ؤ او بلارب او وچ حیوانات به دواړه په کی وونو دوی‌بــه واښه او اوبه ورته ورکول‌او

(۱) تاریخ جهان باستان ۷۱ مخ

پالنه به یی کوله ، چی دزمانی پـه تیریدوسره به بلاربو ښارو یو بېچې وزیږول . دغه بچی اومینـدی به یی دخلکو سره روږ دی شوې اوانس او الفت به یی پیدا کړ . ورو ورو بـه اهلی شول او دوی به ورڅخه استفاده کولـه .

هغه وخت چـی آریایان دحیواناتوپه اهلی کولو بریالی شول دا په اغلب احتمال سره دمیلادنه مخکی دڅلورمی‌زریزی پای اود دریمی زریزی پیـل دی . له بلی خوا اکثره پوهان په دې‌عقیده دی چی اریایانو د امو او سیر دریا دسیندونو ترمنځ سیمه کی دښارویو په اهلی کوله بریالی شول.
او دانګلز داوینا تائیدوی چـی : «پـه خاص ډول سره دمنځنی آسیا بین النهرین او د آمو سیند اوسیـردریا ترمنځ سیمه هغه لومړنی سیمی دی چی هلته په کی دلومړی ځل له پاره ژوی اهلـی شوی دی . »(۱)
دانګلز دا وینا اوس بیخی دتائید وړده چی کوم ښـاروی آریایانو اهلی کړل دهندوکش پـه لمنو کـی پـه طبیعی او وحشی توګه موجود وو او حتی تراوسه پورې یی‌هم بقایا موجوددی . دښارویو داهلـی کـولو شغل دکروندی نه دمخـه پر مختګ‌وکړاوکروندې وروسته انکشاف و موندا او دسوونو کلو په موده کی یی‌پرمختیاوکـړه او دتولید دیوی منبع حیثیت یـی پیـداکـړ . ورو ورو دفـوری‌استفادی ځای اوږ دی استفادی ونیو ځکه چی لومړی دوی فکرنه کاوه‌چی‌ګوندی مالداری هم اقتصادی ارزښت لـری . مګر دسوونو کلـونـو پـه‌دوران کـی مالداری انکشاف وموند او د مالونو دلبنیاتو ، وړیو اوپوټ ستکو څخه په شعوری توګه ډیـره وروسته استفاده وشوه .

کروند ګری هـم په لومړی‌وخت کی‌ډیره ابتدایی او په هماغو دښکاراو ځنګلی میوو دشکولو اوزا ټولولو په‌وسایلویی جریان پیـدا کـړ . دوی لومړی ځـل په‌هماغه تیره لرګی پیل‌وکړ چـی دځینو بوټو نیلـی او ځمکنی محصولات به‌یی دځمکی نـه‌راویستل . کوم تخمونه چی دوی‌په ابتدایی توګه داستفادی لاندې ونیول دغنمو اوربشو او نـورو نباتاتو تخمونه وو . دوی به‌په هماغه لـرګـی ځمکه اړوله او تخمونه به‌یی په‌کی شیندل. دوی کج‌بیل اوډ برینه تیسکوره ډیر وروسته پیدا کـړل او

---

(۱) کورنی دخاص ملکیت او حکومت‌پیداینبت . مولف . انګلز . دتاجیکی اولسی نظم دتاریخ څخه د .ی . س. براګینسکی تالیـف ۱۹۶۵ مسکو ۲۲مخ دښاغلی دوست پـه‌مرسـته او مننــه .

دکـرنی په برخه کی دایو پرمختګو . دوی لومړی زراعت اوکرنه د سیندونو په غاړو کی پیل کړه چـیله یوی خوا به یی ښاربه رسوبی‌مواد لرل اوله بلی خوابه داوبو سـره‌نژدی وو . دوی ویالی نه پیژندلی او د موسمی سیلابونو او باران په‌واسطه به اوبه کیدل. دوی ډولچی اوبو کی ډیری وروسته جوړې کړی‌او که چیری به د دوی بوټی تړی شول نوپه ډولچو اوبوکو کی به یی‌اوبه ورته دخوړ او سیند څخه را اخیستی اوبو تړوته به‌یی اچولی .دا ډولچی بـه اکثراً دښارویو د پوستکو څخه جوړې شوی وی . دویالو جوړولو فن وروسته رایج شو. دزمانی په تیرید وسره به کله چی‌داځمکه خواره شوه او عضوی مـواد به‌یی خلاص شول نودکروندی لـه‌پاره به‌یی بل ځای لټاوه اوهلته به یـی کرونده پیل کړه چی په واقعیتکـی کروندې هم ګـرځند اوسیـار شکل درلود مګر پـه‌دغـه انـدازه‌ګرځندنه ؤ لکه چی ښکاریان اویا وروستـــه پوونـــده ګـــر ځنـــدوو . دښارویو پـــه اهلـــی کولـــو سره پوونده توب انکشاف وکـړ .دمالونو تکثیر رواج وموند او پوونده ؤ بیخی کوچی او ګرځنده بڼه‌غوره‌کـړه . چیری به چی سمسوره ورشو پیدا کیدلـه دوی به خپل مالو نـه‌او ښاروی وروستل او پوول به یـی. کله به‌چی دهغه ځـای واښه خلاص‌شـول ، نودبل ځای په لټه کی بـه شول . له یوې خوا کروندې یوځـه انکشاف وموند او دډیرو خلکو شغل وګرځید اوله بلـی خوا خلك ورځ‌پـه ورځ ډیریدل . دوی ځینی‌وختو نه لوی لوی ځنګلو نه هم دکروندی‌په خاطر سیځل او ایری بـه‌یی پـه زراعتی سیمو کـی وشیندلی ، چی‌ترڅـو ځمکو پسته شی اوښـه حاصل ورکـړی . ځینی پوهان عقیده لـری‌چی کـر نـه اصلاددحاصل تړلولود چارو دانکشاف نه پیدا شوې ده‌چی‌دحاصل تړولی چاری ښځو سرته رسو لی (۱) . نوابتدایی کرنه هـم‌دښځومولود اود کـروندی ابتدایـی پیـل ښځو کړی دی او مالداری چی دښکارپـه ترڅ کـی انکشاف موندلـی دی دنارینه ؤ وظیفه ده داځکه چی دکرنـی سیمی به عموماً دهستو ګنو د ځـایونو په څنګ کی وې اوښځو به‌دکور دچارو په ترڅ کی دبوټوپالنه هـم کوله . مګر مالداری دکورنه دباندې د مـالونو پیول او ګـرځیدل غوښتل اود باندې چـاری دپخوانـه نارینه وسرتـه رسولـی . کـرنـه او مالداری دنړی دیوی خاصی سیمی‌نه خپره شوی نه ده بلکی دنـړی پـه ډیرو ځـا یـو نـــوکـی دوخت او مکانی شرایطو پـه توپیر سره پیل شوی ده . لـه بلی‌خوا دښارویو او نباتاتو په نوع کـی یـی هم یوتر بله توپیر درلود . دپیـل نیټه او عمریی یوتربله سره

(۱) تاریخ جهان باستان ۷۱مخ

په سوونو کلونه فاصله لري . ټولو ټولنو یو اوعین څاروی اوعین بوټی پاللی نه‌دی بلکی په بیلوبیلو ځایونو کی بیل بیل نباتات او جلا جلا حیوانات پالل شوی اوروزل‌شوی‌دی . دمیلادنه دمخه څلور زره کاله پخوا په باختر ، اوسنی ترکمنستان او دآمو دسیند او مرستیا لانو په غاړو او کڅونو کی دکرنی‌په ابتدایی چارو پیل شوی دی او آثاریی موندل شوی دی . سرې‌ویلای‌شی چی دمرکزی آسیا سیمی دکرنی لومړنی مراکز دی چی داروپا سره‌دمقایسی په ترخ کی ورڅخه یوزر کاله قدامت او سابقه لری . ځکه‌چی داروپا کرنه دمیلادنه مخکی دریو زرو کالو نه زیاته سابقه نه‌لری . داروپا ځینو قبایلو دمیلادنه دری زره کالو پخوا دغنمو، اوربشو،ږدنو ، نسکو ، نخودو ، هوږی او داسی نورو بوټو لکه منهی په کرلوابتدایی پیل کړی دی حال دا چی دهمدې مودې سره په معاصر زمان‌کی دافغانستان په خاوره او دآمو دسیند په پورې غاړه آریایی سیموکی دوی دغنمو ، اوربشو ، انځرو، نخودو اونورو نباتاتو لکه پیاز،کدو،هوږی ، کاهو او کونځلو په کرلوکی پوره مهارت حاصل کړی ؤ او په‌سوونو کاله پخوا ورسره بلد شوی وو . په افغانستان (خصوصاً جنوبی برخو لکه . کندهار . ارغنداب) او کویټه کی داسی لرونه موندل‌شوی دی چی تاریخ یی د میلادنه پخوا شپږو زره کالو ته رسیږی اودکروندې او کرنی شاهدی ورکوی. (۱) دشوروی اتحاد دجیوبوتانیك یولوی عالم ن.ی. واویلوف په افغانستان کی دنباتی انواعو دتاریخی‌مراکزو په پیداینښت پسی ډیری څیړنی کړی دی اود خپلو څیړنو په‌نتیجه کی دی عقیدې ته رسیدلی دی چی دافغانستان دغرونو هغه لمنی چی دسیندونو په غاړو کی پرتی دی او کڅی یی جوړې کړی‌دی او دهند دنیمی وچی شمال‌لویدیځی سیمی (پښتونستان) دغلو دانودپیدا ینښت لرغونی مراکز دی چی دهمدی سیمونه دغه حبوبات نوروسیموته لیږ دیدلی دی . په افغانستان کی دکروند گرو داسی ټاټوبی موندلی شوی دی چی دمیلادنه مخکی څلورو زرو کالو ته یی دو دانیو تاریخ رسیږی . (۲) واویلوف وایی : د ډیری لرغونی کروندې‌په باب ، هرات ، کندهار اودافغانستان جنوب ختیځی سیمی دزیاتی پاملرنی‌وړ دی . لومړی حیوان چی دسپی نه وروسته په ځنګلو نوکی ونیول شو او اهلی

---

(۱) دافغانستان تاریخ لومړی ټوك‌په روسی ژبه دښاغلی دوست په مننه

(۲) کابل مجله لومړی گڼه ۱۳۵۵کال ـ ۸۹ مخ دښاغلی دوست څیړنه

کړی شو غویی و . میږی او وزی‌ډیری وروسته اهلی شولی. دغویی اوسپی تقدس او احترام پـه آریایانوکـی زښت ډیر زیات ؤ او د دوی دمذهبـــی عقیدې جـزگرځیدلی وه.
زردشتی دین چـی دآریایی پخوانیوعقایدو او عنعناتو یـو منظم شـوی شکل دی دڅارویو پـه برخه کـی‌دهغو پخوانیو آریایی عقایدو بقایـا ساتی او ډیرځله سپی اوغویی پـه‌ډیر احترام او درناوی سـره یادوی چـی حتی دوی خپل یوشمیر مشران‌هـم دنیمه غویی په بڼه بولی .
پـه زردشتی دین کـی داسی ډیرې‌جملی شته چی دهغو په رڼاکی پـو هان دې نتیجی ته رسیدلی دی چـی‌پـه آریایـی ټولنو کـی دتـوتمیزم عقاید موجود و ، ځکه چـی په‌مینوخرد کی داسی راغلی دي:
«گوپت شا دآریانا ویجو په ودانـه‌سیمه کی ژوند کوی . دی دپښو نه ترنیمایی تنی پورې غویی وزمه دی‌اونیمایی نه پورته ترسـره پـورې دانسان په بڼه دی . دی داوبو په‌غـاړه ناست دی او دار باب الانـو اعـو عبادت کوی . (۱) په اویستاکـی لنډی تیره داړی سپی دیوگران کورنی ژوی په صفت ستایل شـوی‌دی. آس اوخر هـم ددې څارو یونه وروسته اهلی شول او آس دآریایانـوخاص حیوان بلل کیږی ځکه چی آس په هندی بومیانو ، ایرانی‌بومیانـو اود میزو پوتانیا په ټولو برخو کی هیڅ سابقه نه اری اوپه آسوری‌بابلـی او دبین النهرین پـه نورو تمدنونو کـی دآس هیڅ څرک نه‌دی‌موندل شوی . داسـی ښکاری چـی آس دهندوکش دلمنو یو اصلی حیوان دی چـی دلومړی ځـل لـه‌پاره آریایـی ټولنـو کـی ډیـر و .دآس درناوی او محبوبیت هـم پـه آریایی ټولنو کـی ډیرو آس اوخـرهـم دمیلادنه مخکی څلورمی زریـزه کـی اهلی شوی دی او د دوی سره‌یـی دسپرلی او پیټی په چاروکـی پوره مـرسته کوله .

## دکرنی الات او وسایل

دکروندې وسایل بیل بیل شیان وو.پـه یو ډول گینتی (کولنگ) باندې به یی ځمکه اړوله چی لاستی بـه‌یـی دارگی څخه و اوپه سرکی به یی‌یوه تیره تیره یاد هوسی اویابل‌حیوان ښکر ټومبلی ؤ . دکروندې‌او دنورو بوټو دریبلو له پاره له‌یـوډول لور او یاچاکو څخه کار اخیستل کیده چـی دارگی نه‌به جوړ شوی‌واو خوله به‌یی یوه تیره ډبره وه . دغلو او دانو وړی به‌یی پـه کوتکونـو ټکول او دانی به‌یی ورڅخه جلا

---

(۱) کابل مجله ۱۳۵۵ کـال لومړی‌گڼـه ۹۱ مخ

کـولی . البته په ابتدایی وخت کی به داکار په لاسونو کیده او دا چاری
بـه ښځو سمبالولی . کله به چـیدغلی دانی دبوسو څخه جلا شوی نو
پـه بغریو کی به تکول کیدی چـیدابغری به دتیږو څخه جوړی شوی
وی . دنیولیتیک د دوری دآریایانوڅخـه دحکاکی قلمونه ، تبرونه ، چا
کوګان ، تخځ او داسی نور ډیرشیان پاتی دی چـی دارکیالو جستیانو
لاس تـه ورغلی دی او دا وسایـل اکثراً صیقل شوی وو (۱) . تبربه
یـوه تیره څوکی ډبره وه چی کوږلاستی بـه پکی اچول کیده او پـه
لاستی کـی بـه دیوی تسمـی پـه واسطه کلکه کړی شوې وه اوونی به
یـی پـر غوڅولـی . دونو دلر ګیوڅخه یی دژوند په مختلفو سـاحـو
کـی کار اخیست اویو څـه تحول یی پـه ژوند کی څرګند شوی ؤ . دوی
دسیندونو څخه دپورې وتلو له پاره دونو دتشوډ ډونو څخه کار اخیست
اویا به یی دونو دتختو څخه دبیړی کـار اخیست چـی څنګ پر څنګ به
یـی څـو تختی سره وتړلی او پـه سیند کـی به یی لاهـو کړې .

## دکوړونـو جوړښـت :

کله چـی په همدی دوره کی د دوی شمیر زیات شو اونور په غارونوکی
بسیا کیدلای نـه شول اوله بلی خوادغذایی منابعو سره تل طبیعی غـارو
نومنظماً وجودنه درلـود ، نودوی دکوړونو په جوړولو پیل وکـړ اود
راز راز خـونو جوړول یی پیل کړل.په ځنګلی سیمو اویا ځنګل ته نژدی
سیموکی دو دانیو په جوړولو کـی دارګی څخه زیات کار اخیستل کیده
اود هوارو ځمکو خلکوچی لرګی ورڅخه لیری ودختو او ډبروڅخه یی کار
اخیست چی بیا به یی هـم دپاسـه پری لرګی اچول . دوی به دچراغاو
یااور بلو نی له پاره دغوږ و لرګیواویا وړو نباتوتو دساقو څخه کـار
اخیست . نغری به دخونی په منځ کـی وچی په سر خلاصی توګه بـه
پـه کی اور بلیده اود لوګی له پاره به یی په بام کی دنغری دپاسه موری
پـریښی وه . دوی دغـه وختد کـټ نـه استـفاده نـه
کوله اود ونوپه تختو اویا نیمه ډونوکی به څملاستل چی دونو څپولی
به یی په کی اچولی وو اویا به یـی نور پاسته واښه په کی خواره کړی
وو . د بالښت لـه پاره بـه یـی همـدغـه واښـه نسبتـاً هسـك
جوړول او پرځمکه به عموماً دحیواناتـو پر پوستکو اویا پوزیو بـاندې
کښیناستل . دخوراك اوڅښاك سامانونه او لوښی یی عموماً دځرمنی ،لرګی

(۱) دا وسایل دکابل موزیم په قبل المیلاد غرفه کـی مـوجـود دی .

، د ونو پوستکی او ډبرین شیان وو، دا وبو دلوښی به توګه یی دنری غاړی کــد وښخــه کار اخیســتاودیو ځای نه بل ځای ته داوبو دانتقال استفاده یی تری کوله .

پــه همدی دوره کی کلالی اود خاورینو لوښو جـوړو لو اختراع منځ ته راغلــه اود پخو خاورینو لوښو په جوړو لو ســره د دوی په ژوند کــی پوره بدلون راغی . منظم پخلی اودخوراك او ښبناك له پاره منظم او بیلا بیل سامانونه جوړ شول . دکلالــی پــه ځــرخ سره پخپله دکلالی پــه فن اود خوراکو نوپه تنوع کی پـوره انکشاف منځ تــه راغــی اود خوراکــو نو دهضــم پــه بــرخه کی پوره اسانتیا پیدا شــوه .

ځینی پـوهان عقیده لـری چـی دکلالی هنر دښځـو اختراع ده او د تقدس مرحلی ته رسیدلــی ؤ چـی دعقیدوی اساساتو پــه بنا هغه ځای ته چی لوښی به په کی جوړیدل دهرچـا ننوتل منع وو . اوس هم دډیرو کسبو نو چار ځایونــه (دستګا وی)داحترام او درناوی وړ دی اوخاص مقررات لری چی دمثال په توګــه دپښی دکان اویا دتودولو دکان یادو-لای شـــو . (۱)

آریایانو بــه داقلیمی شرایطو پــه ملحوظ اود ورشو ګانو اوښې ځایونو پــه تغیر سره لــه یوځای نه بـلځای تــه مــوقتی او کلــه دایمــی مهاجرتو نه هــم کول او خاورین لوښــی به یې هم له ځــانو سره نقلو ل مګر دماڼونو ښخه دحاصل اخیستلواود موسم دبدلون نه وروسته بــه یــی خپل خاورین لوښی په یو محفوظځای لکه طبیعی غار یاسمځــه کــی منډل چی دبارانونو او واورو دضررنه محفوظ وی دنوی کال پــه هماغه مـوســم کی به یی خپـل لوښی بیــاراویستل او استفاده بــه یــی تــری کــولــه .

**پـوښـاك :**

پوښاك چی اصلاً دیـخ نـه دځانونودساتنی پــه منظــور استعما لیـده پخوانی شکل یی چـی تراوســه موندلشوی دی یوراز کچړی ، ملابند ، ټټربند او خولی وازی پرتوګ ؤچیدحیواناتو دپوستکـو ښخـه جوړیدل ځینی به د پرتوګ پرځــای یوه ټوټه دنامه نه لاندې بدن ښخه تـاوولــه بیاهم دتودو ځایونو ډیر طوایف ووچـی هیڅ لباس یی نه درلود اوښـږ بــه ګرځیدل . ښکار یان اوکــروندګر دپووندهِ ؤ ښخه وروسته دپــو ښاك سره بلد شــول . ددې عصــر لباس اکثــره خــرمین اویــا دوړیــو

(۱) تاریخ جهان باستان ۷۵ مخ

کوځي وو چې په لازمه اندازه بـــه یـې غوڅـول . بیاهم دلباس نوع او زمان په قطعی توګـه نه شی ټاکل کیدای او دټولو طایفو په برخه کی صدق نه کو او دهری سیمی لباس پـه اقلیمی شرایطو او تولیــدی منــابعو پورې اړه درلوده اود دوی د ذهن انکشاف په کی زیات سهیم ؤ. دحیوانی منابعونه بـر سیره دنباتاتـو پاڼی اونباتی الیافونه او داسی نور مواد هـم د پوښاك له پـاره استعمالیدل . پـه همدی دوره کـی وریښل او اوبدل رایج شوی دی اوددې فن په ظهور سره په لباس کی تنظیم او تنوع پیدا شوه او دوړیوځخه دلومړی مادی په حیث استفاده وشوه . اکثره خلك پښی ابله ګـرځیدل او دپښو پوښاك ډیر وروسته رواج وموند چـی لومړنی شکل یـی دلرګی او څـرمنی اویا نورو نباتاتو ځخه ؤ .

## اجتماعی او اقتصادی اړخ

پـه دې دوره کی دښکار او کروندې سیمی دیوی طایفی دخلکو مشتـرك مال ګڼل کیده. دوی به په ګډه سره کار کاوه اود کروندې ظهـور دوی پـه ډله ایز کار او ګډ وهڅو لاټینګ کـړل . ځکه کروندې ډیرو خلکـو ګـډکار ایجاباوه . د دوی بیړی ،اهلـی حیوانات او اورهـم دیـوی طایفی مشترك مال بلل کیده. مګـر کـوم شی چـی په دی دوره کی د شخصی مالکیت بڼـه پیدا کـړی وه دکار او ښکار وسایل اوالات وو . غشی اولینده ، ګینټی، کولنګ، تبرچـاکـو او داسی نور شیان لکـه ښځتی سامانونه دهغه چا شخصی مال ؤچـی پخپله به یی جوړکـړی وو . حـرفه یی صنفونو تشکل کړی نه واوهر څوك دخپلو ضروری وسایلـو جوړونکی وو . له دې شیانونه وروستــه دویم شی چـی دزمانی پـه تیریدو سره یـی دشخصـی مالکیت بڼـه پیدا کړه ، اهلی حیوانات وو. مګر داشیان هم پـه ډله ایز مالکیت کـی راتلل او داجتماعی او طایفه ایز مالکیت اجزا او برخی وی اوپه ډله ایز مالکیت کـی تری دطایفی ټولـو خلکو استفاده کولای شوه . په خوراکـی شیانو کـی هم ذخیری اوپاسری رواج پیدا کړی نه و او دښکار اوزراعت محصولات به سمدستی دخپلو انـو او مربوطینو سره ویشل کیدل.مثلاً چـا به چی په ښکار کـی کـوم حیوان وو اژه نوغوښه به یی دخپلوانوسره سمدستی ویشله او نه یی ذخیره کوله . له بلی خوا خپلوانویی هم دا طمع لرله چی خپله برخه په کی واخلی . ځکه چـی متقابلی راکړی ورکړی دیوی قوی عنعنی په توګه لوړ مقام درلود . دا رواج دزرګونو کلونو څخـه تراوسه پورې پـه زیاتو پښتنی قبایلوکی بڼـــه پوره ټینګ دی . دا وسیدنی خونی

به ډیری لویی جوړی شوی وی‌چی‌حتی ترسلو تنو پوری به هم په کی
ځائیدل چی دا خلك بـه دیوی لویی‌کورنی غړی وواو واړه‌واړه فامیلونه
پـه‌کی شریك وو . ددې خونونه‌ونی‌دامـو دسیند پرغاړه دشوروی اتحاد
دیو اتنوګرافیست (س . تولستوف)له خوا موندل شوی چی د کلتمینار
پـه تمدن پوری اړه لـری (۱) . داخونی به‌ډیری پراخی وی چی تل به
په کی اور بلیده او اوریی‌مړه کیدوته نه پریښود.ځکه چی داورپیداکیدل
ډېر اسان کارنه ؤ او داور دمختلفوخـواصو له کبله ورته په احترام
او درناوی قایل وو . دا احترام حتی‌دتقدس مرحلی تـه ورسید اوپـه
ویدی دوره کـی ورته یـو خـاص‌رب‌النوع قایل شوی وو چی «اګنی»
یی باله او ډیر نذرونه به یی‌ورته‌کـول چـی دهمدی تقدس اغیزه په
اوستایی دوره کی په زیات قوت‌اوشدت سره لیدلای شو چـی خـاص
اور تونونه تاسیس شول اومخصـوص‌کسان ورته مقرر شول. تردی پوری
چی داور تقدس اوس هم‌په زیاتروآریایی اقوامو کی لیدل کیږی چـی
شـرح به‌یی وروسته راشـی .
دهمدی دورې په پای کـی دلویـوخونو په موجودیت برسیـره ، وړی
خونی هم رایج شوی ری چـی پـه یوځای کـی دیوی طایفی خلکو څنګ
پـر څنګ سره ژوندلی او ژردی اوخپلوان فامیلونه به‌سره ډیر نژدی
ګاونډیان هم وو . ورو ورو دزمانی‌پـه تیریدو سره دکار وسایل بشپړ
یدل او ددی تکامل تر څنګـه انفـرادی تولید ډیرښت ومونـد . دکـار
طبیعی ویش عموماً دنراو ښځـی دجنس پـه اساس بنآ شوی ؤ چـی
ښځینه ډلـی او نارینه ډلی جوړی‌شـوی . تردې پورې چـی دهـریو
جشنونه او عنعنات هـم سره جـلااو بیـل شـول . څرنګه چـی د
محصولاتو تولول او غونډول او دکورسمبالښت اوپخلی دښځی په لاس‌وو
یعنی داقتصاد او تغذیی مهمه منبـع‌دښځـی ملکیت ګنـل کیده نو د دې
امتیاز پـه بنا په‌دې دوره کی ښځونـه یوازې داچی دنارینـه ؤ سـره
مساوی حقوق دراودل بلکی اجتماعی‌موقف یی پرنارینه ډیر لوړو چی د
همدی امتیاز له مخی دمور مشری مقام‌پـوره ټینګ شو . دښځی اقتصادی
مالکیت داجتماعی امتیاز سبب‌او باعث‌شوچـی په اجتماعی تاریخ کی زښت
ډیـر اهمیت لـری . همدا وجه وه‌چی په دې دوره کی چی دمور مشری
مقام ډیر اوچت شو . ددی پـرځای‌چـی ښځه دنارینه کورته واده شی
میړه به‌یی له کومو معمولو مراسمودښځـی (ناوې) کـورتـه راوستل
کیـده او نارینه بـه د موضوعـه‌مقرراتو پـه مراعات کلك مکلف ؤ

---

(۱) تاریخ جهان باستان ۷۷ مخ

چې دمقرراتو نه دمخالفت په صورت کې میړه دښځې له خوا شړل کیدای شو (۱) مګر داچې مشري مور یا مشري نیا به یې شفاعت وکړ اوبیرته به پاتې شو. بل چا دمیړه دبیرته راګرځولو هیڅ حق نه درلود . همدا اقتصادي امتیازو چې ښځې ته یې اجتماعي امتیاز او لوړ موقف ورپه برخه کړیؤ . واده په دې دوره کې خاص تشریفات نه لرل اود ښځې له پاره دردو لویا توافق کولو لوړ حق په برخه ؤ چې هیچا په کې مداخله کولای نه شوه .

## مشري او ریاست

دیوې قبیلې هرې طایفې یو مشر درلود چې ښځو اونارینه ؤ دواړو کولای شول چې درئیس او یامشرپه توګه غوره شي . په ځینو آریایي قبایلو کې زیاتې ښځې مشرانې وې اوپه ځینو کې به نارینه دخپلې طایفې ریاست په غاړه در لود .

دهرې طایفې غړو کولای شول چې خپل مشر لیرې کړي اوپه عوض یې بل نفر دمشرپه توګه وټاکي .دمختلفو طایفو مشران به دیولوی مهم کار له پاره سره راغونډ یدل اوډ ټولې قبیلې په چارو اوپیښوکې به یې تصمیم نیوه اومربوط مسایل به یې حل کول (۲) . دطایفې او حتی دقبیلې مشرتوبه ارثي بڼه نه درلوده او یوازې دیوکس په شخصي صفاتو اومهارتونو پورې مربوط وه یعنې کوم څوك به چې دپوره تجربې خاوند ؤ پوهه او حوصله به یې لرله او شجاعت اوپه جنګ کې میړانه به یې لرله دطایفې اویاقبیلې دغړو درایو په اتفاق یااکثریت به دمشرتوبه مقام ته رسیده اویوازې عمومي افکارو په دې برخه کې ستره اغیزه درلوده . شخصي ثروت او کورنی قدرت په دې برخه کې بې اغیزې ؤ . په ابتدايي ګله ټولنه کې دحکومت هیڅ بڼه نه وه بلکې یوډول دیموکراسي وه چې اوس یې ساری نه موندل کیږي .

هرې طایفې اوقبیلې خپل خاص مذهبي مراسم ، جشنونه اواخترونه لرل او مخصوصه هدیره یې وه .دجنګ اوسولې په وخت کې دطایفې هرغړی دیوبل نه په دفاع مجبوراواو مکلف ؤ.دطوایفوتر منځ چې دیوې لویې قبیلې څانګې به وې یو تر بله یوبل راز تړون هم وجود درلودچې

---

(۱) کورنی دخاص ملکیت اوحکومت پیدا ینبت . دانګلز لیکنه : دروسي ژبې څخه دښاغلي دوست په مننه
(۲) دافغانستان پخوانی تاریخ د ښاغلي کهزاد لیکنه

هغه به دیوی قبیلی دځو طایفو تـر منځه ؤ چی متقابله دفاع اومتقابله همکاری او مرسته وه .

دقبایلو او طوایفو دژوندانه سیمـو بـه یو تر بله ټاکلی سرحدونه او بریدونه درلودل چـی یا به ځنګل ،غـر اویا سیندو . دتیری او تجاوز پـه وخت کی بـه دمربوطو طایفومشران سره ټولیدل او قبیلوی جرګه بـه یی جوړولـه . دقبیلی دټـولوطایفو استازو به درای داظهار برابر حقوق درلودل اوهرچا به په آزادانه ډول خپله رایه څرګندوله . دبحث اومذاکری نه وروسته به یی درایود اکثریت پـه اساس مقابل لوری‌ته دجنګ اویا سـولـی اعلان کـاوه .دجرګی غړو به‌چی دبحث او مذاکری دتنظیم لـه پاره درایو په ډیربنت یـورئیس ټاکه ، دوی کولای شول چـی دقبیلی مشر خلع کـړی اوبـل‌نفریـی پرځای وټاکـی پـه جنګـی فعالیتونو برسیره مشر دا وظیفه هم‌درلوده چی لاس ته راغلی ولجی د خلکو ترمنځ په مساوی توګه وویشی‌اودهر ډول شخـړی مخـه ونیسی او همدی چارو د ده د دریځ اومقام په بیتګبنت کـی ډیره اغیزه درلوده طایفه یی نظام په بشپړه توګه دموکـراتیك کیفیت درلود (پـه ننني‌ـ مفهوم داقتصاد له پلوه نه) ځکه‌چی‌ټول آزاد اویو تربله یی دورونواو خویندو په څیر ګوزاره کوله . ټول‌یوتربله دمساوی حقوقو خاوندان‌وو. د دوی ترمنځ داخلی اختلافات بـه دطایفه یی جرګی له خواحل کیدل . فرد دطایفی او قبیلی څخه او طایفه‌او قبیله دفرد څخه په دفاع‌مجبوره وه . دخارجی تیری او تجاوز پـه مقابـل کـی دطایفی اوحتـی دقبیلی غړی پـه کسات اخیستلو مکلف‌واویا به یی دسولی په صورت کی‌دهغه ځپلی شخصی حقوق بیر ته ورتـــه راګرځول . دا خبره دیادونـی وړده چـی د دوی ددمـوکراتیکـو قوانینوڅخه یوازې دطایفی او قبیلی غـړو استفاده کولای شوه او داخلی اهمیت یـی درلود . دباندې او دبلی قبیلی خلکو ددې دموکر اتیکو قوانینو څخه استفاده کولای نه شوه .

## کلتـور

څومره چی دټولنی دتولید وسـایـل‌بشپړ یدل همغاړی ورسـره دکـار نتیجه هـم زیاتیدله او انکشاف یـی‌کـاوه . تجربـی پخیدلـی اود دوی ژوند دترقی خواتـه روان ؤ . پـه ښکار او کار کـی مهارت او تنوع د دوی ژبه او شعور هم پوخه پراخـه کړل . دکروندی دمختلفو موسمونو پـه کیفیت او احوال پوه شول ، دځوان او زوړ حیـوان پـه ابتدایـی

کیفیاتو او احوال وپوهیدل دشمیراومحاسبی سره په ابتدایی توگه بلد شول اوږدو مزلونودوی دستورودحرکاتو سره آشنا کړل او په دی توگه یی دمختلفو پیښو او اعمالودنتیجی څخه دځان او چاپیریال په برخه کی تصورات او تجربه یی‌معرفت زیات شو . دناروغیو پرضد یی‌دجادو ټوټکو او کوډونه برسیره‌دطبی بوټو تاثیرات‌کشف کړل‌مساژاو پوستکی موږل یی هم زده کړل .یونسل نه بل نسل ته دتجربو تراکم او دیوی طایفی او قبیلی نه بلی‌طایفی اوقبیلی ته دتجربو انتقال‌دوی بریالیو نتیجوته ورسول . لومړی‌لیك چی انځوری بڼه یی درلوده‌په طایفه یی نظام کی پیدا شوی‌دی‌چی هری علامی به ځانته مخصوص قرار دادی مفهوم درلود . مثلاًدوی‌به دتور برگ اس دانځورنه دیوه خاص مرض مفهوم اخیست . یابه دگنډی گنډی رسی تصویر یوبل مفهوم درلود . دلومړی انځور لیك‌ایجاد د دوی دمجرد فکر پوره پر اخوالی ښیی . نوره ښوونه او روزنه یوازی په بدنی فعالیتونو او ورځنیو کارونو پورې مربوطه وه .مشرانو به دکشرانو مراقبت اوڅارنه کوله او هغوی به یی دزیات مهارت‌په منظور روزل چی دې ښوونی او روزنی به یولړ عملی ازموینی‌هم لرلی چی ترڅوبه په دی ازموینو کی دبریالیتوب په صورت‌کی دخپلی ټولنی کامل او عیارفعال غړی وپیژندل شو . دا ازموینی به‌دیو لړ شکنجو او ستو نزو سره هم ملگری وی چی د داسی صحنودترتیب له‌پاره به دطایفی او حتی قبیلی غړو خپلی هڅی نه سپمولی‌او گډون به یی په کی کاوه . دهرچا ورتگ آزادو او مخصوص جشنونه به‌ترتیبیدل چی بی‌زړه او ناکامو کسانو ته به دتحقیر په سترگه کتل کیدل او دبلی‌از موینی له‌پاره به یی ځان تیاراوه . دپهلوانی اوغیرې نیولو فن دارییانو مخصوص مهارت ؤ او دی فن ته یی په ډیره‌درنه سترگه کتل او پهلوان به‌دهر چاله خوا نمانځل کیده . (۱)

## هنر او انځورگری :

هنراو انځور گری هم په دوی کی‌په‌ابتدایی بڼه رواج موندلی ؤ . په غارونو او سمڅوکی د دوی یوشمیرانځورونه موندل شوی دی چی د ځارویو دیوی رمی اویا انسانانوڅیری ویستل شوی دی . همدا راز دهمدی عصر یوشمیر مجسمی هم‌موندل شوی دی چی عموماً دښځو

---

(۱) دافغا نستان پخوانی تاریخ ۱۲۱مخ

دی . دا مجسمی دا رابنیی چی سینګار او و ینبتان تورول هم په دوی کی رایج وو . خالونه وهل او پوستکی رنګول چی دطبیعی رنګونو څخه به یی استفاده کوله په پراخه اندازه رایج وو .
دکور وسایل او دپخلی لوښی به یی هم سینګارول . دښځینه مجسمو دپیدا ښت نه اتنوګرافستان دوه نتیجی اخلی .
یوه داچی دغه دوره دمور مشری خاصه مرحله ده چی داقتصادی امتیاز له کبله یی په ټولنه کی لوړ مقام درلود .
بله داچی ددې مجسمو جوړول دیوی عقیدوی اړتیا په اثر منځ ته راغلی دی . ځکه چی دغه وخت جادویی طب زیات رواج درلود او د علاج کولو یوه مهمه وسیله وه. نودا مجسمی دهغو جادوګرو طبیبانو نیاګانو مجسمی دی چی دهغوی له مړینی نه وروسته هم دتقدس په سترګه ورته کتل کیدل جادوګری او کوډی دښځو په واسطه منځ ته راغلی دی . (۱)

## موسیقی

د اجتماعی ضروریا تو دیوعنصر په توګه په ابتدایی ډول موجوده وه . دوی مخصوص جشنونه اواختر ونه لرل چی وخت ناوخت دځینو داسی پیښو په صورت کی چی دړی به خوشحاله شول هم خپل سازونه غږول . دموسیقی آلات یی هم په لومړی وخت کی دونو ډډونه ، لیندی اوکړ کو(دړ رمو)څخه وو . دموسیقی بادی الات هم وروسته په کی شامل شول چی دکړکی شپیلی وه ، ډول هم را پیدا شو . دموسیقی سره به اکثراً اورده اتنونه . پالی او نڅاوی هم کیدل چی ښځو او نرو دواړو په کی ګډون کاوه .

## دود او مذهب

څرنګه چی دوی دنورو انسا نانوغوندی دطبعیت سره دمبارزی په ډګر کی خورا ضعیف او ناتوان وو نوپرطبیعی قوتونو دبریالی کیدوپه هیله اوامیدیی لومړنیو عقایدو دسحر اوجادو په بڼه ظهور وکړ ، ځکه چی دوی فکر کاوه چی ګوندی دسحراوجادو په واسطه کولای شی پر طبیعت څناورو اوونو باندی یومافوق طبیعت اثر اچولی شی یاالا اقل به دطبیعی قواو دشر او خطر څخه په امان اوسی چی د ښواو بدو په صفت یی یوشمیر نوری انګیرنی هم درلودی . دوی به دروزی د

(۱) تاریخ جهان باستان ۷۹ مخ

د پرښت ودګیدی دمرښت دتفاول په عقیده خپلی ګیدی پـه ځینـو عجیبو او نادرو تیږو پورې سولولیچی وروسته دارسم به دیوې مشری ښځـی او سپین ږیری لـه خوا اجراکیـده د دی دود بقایا تراوسه پوری هم په ځینو افغانی قبایلو کی موجوددی . په دی توګه چی اوس خپلی ګیدی اکثراً دیو روحانی شخص دقبرپـه شناختو اویا کومی داسی مقدسی تیږی پوری موږی چی کومه فولکوریکـه افسانـه ولری . غیـب ویل هم دښځو وظیفـه وه چـی زړواو سپین سرو ښځو بـه دا وظیفه اجرا کوله دخوبونو تعبیر او په هغو باندی اعتقاد هـم په دوی کی رواج مـوندلی ؤ چـی ددې عقیدی بقایاهم تراوسه پورې په اکثرو ټولنو کـی موجود دی او حتی یوشمیر مسلکـیاشخاص او کتابونه هم منځ ته راغلی دی او مـذهبی بڼه یی پیدا کړې ده.

لمانځه (Animism) ده . دوی به موجوده وه چـی هغـه داروا ګانـو یوه بله عقیده هـم په دوی کـی عموماً دخپلو مړو قهرمانانو اومشهور ونیکونو ارواګانی خپلی مرستی تـه رابللی او هم یی یقین درلـود چـی طبیعی قواوې هم د دوی غوندی ساداری او یاځینی نالیدونکی ارواګانی موجودی دی چـی دانسان پـه سـرنوشت کـی پوره اغیزه اری . نـو دوی به دغه ارواګانی دتنګسی پـه وخت کـی په خاصو مراسمو نمنځلی اورا بللی او حتی ندرونه او خیراتونه یی هم ورتـه کول (۱)

دغـه ټولی عقیدی دطبیعت پـه مقابل کی دانسان دضعف او بی وسی نـه پیدا شوی وی ، ځکه چـی دوی هغه وخت دفکر شعور دتنوالی لـه کبله نه شـو کـولای چـی دطبیعی پیښو پر له پسی جریان درك کړی اود هغو ترمنځ ارتباط کشف کړی نوکله بـه چـی دوی دطبیعی پیښو لکـه نیز (سیلاب) دځنګله داور ، وچکالی، قحطی او داسی نورو پیښو سـره مخامخ شول نوپرته له دې یی وبله لارنـه درلـوده چـی ددې پیښو نـه لوړی مافوق طبیعیت قواوی فرض کړی اوهغه په دی پیښـو دپاسـه وبولی . نود دغو پیښونه دخلاصون اوبچ کیدوله پاره به یی هغو فرضی قواوته ندرونه او عبادت کاوه اونمنځل به یی .

تـوتمیزم ( totemism ) چـی دیو حیوان داحترام او درناوی عقیده ده هم په آریایی ټولنه کی موجوده وه او دمالـداری د انکشـاف نـه وروسته او مخکی دواړو وختونو کی یـی رواج دراود . پـه ښکاری دوره

(۱) پـه ویدی سرودونو کـی داراز ډیـرې دعاګانی شته چـی دنیکونـو د ارواکانو رابلنه کوی او ندرونه ورتـه کـوی .

کی‌یی دښکار یانو دسحراو کوډوبنه پیدا کړه او په وروسته دوره کی یی لمانځنی او درناوی مقام پیداکړ.(۱)

له بلی خوا دکروندې دانکشاف سره سم دوی په ځینو نورو مافوق طبیعی قواو هم عقیده پیدا کړه.څرنګه چی دکروندې په حاصلاتو کی لمر ، باران ، وریځ اوبو سیلاب،حرارت او سړښت لویه اغیزه درلوده نو دوی دځپلو هیلو په بنیاددباران اوبو ، لمر ، آسمان اوداسی نورو طبیعی مظاهرو له پاره معنوی‌اومادی سمبولونه وضع کړل چی دې سمبو لونو دزمانی په تیر یدوسره انکشاف وکړ اود دوی دمذهب یوه ستره برخه یی تشکیل کړه‌په ویدی او اوستایی دورکی چی کروندی او مالداری دواړو پوره‌انکشاف کړی ؤ ددې طبیعی مظاهرو پوره اثرات مو ندل کیږی .

# دآر یا یانو مهاجر تو نه

## دلومړنی اشتراکی نظام ړنګیدل،دطبقاتو او دولت ظهور او تشکیل:

لکه چی دمخه وویل شول دآریایی‌اقوامو داومری خاص ټاټوبی ټاکل یو مشکل کار دی ځکه چی دپوهانولاس ته لاتر اوسه پورې په کوم ځای کی مستند اسناد نه دی ورغلی‌چی د دوی دلومړنی پیدایښت ټاټوبی او شجروی نسبت تثبیت کړای شی‌له بلی خوا دلته زمونږ موضوع دهغه وخت څخه پیل کیږی چی دوی‌دتمدن یوی خاص مرحلی ته داخل شوی او دژوند دتکاملی سیر په رڼاکی ورڅخه نښی او بیلګی پاتی دی . نود دغو بقایاو په استنادپوهان دی نتیجی ته رسیدلی دی چی دآریایی اقوامو داستوګنی دځایونږ حدود وټاکی او هغه داورال د سیند او بحیری نه نیولی دهندوکش لمنی دآمو سیند غاړی . دتوری بحیری اود کسپین دبحیری شا اوخوائځایونه وو .

دوی په دغو سیمو کی خواره‌اوسیدل او بیلی قبیلی په کی‌پیدا شوی وی چی دزمانی په تیریدوسره‌هدغه قبیلی دبیلو بیلو قومونو بڼه پیدا کړه او یوتر بله سره‌لیری شوی .

آریان په لومړی سرکی په‌دوه‌برخو ویشلای شو ، چی یوی ته یی عربی برخه ویل کیږی او داهغه آریایان دی چی دوی داروپا خواته مهاجرت وکړ . ددوی دمهاجرت‌وخت‌پوهان دمیلادنه پخوا درې زره کاله اټکلوی . دوی مرکزی ارو پاته ورسیدل مګر داقلیم دیخوالی په‌اثر

---

کابل مجله د۱۳۵۵ کال دویمه ګڼه‌دښاغلی دوست لیکنه او څیړنه

چـی داروپا شمالی برخی ډیری سړوی ، داروپا جنوبی برخوته بښکته شـول . دوی دغه وخت خپل اهلـیمالونه له ځانو سره اروپا ته بوتلل او په ابتدایی توګه په کروندههـمپوهیدل دا لومړنی آریایان دهلتانو پـه نامه یاد شوی دی . دوی دروم یونان او دمدیترانی نـوري شمالـی بـرخـی ونیولی . او داروپا د هغه لـوی تمدن بنسټ یـی کیښود چـی تر اوسـه پـو ری‌شهرت لـری و داکشـرو علومو او پوهنو مبدأ پـه یونان کـی دهمـدی‌تمدن په رڼاکی‌لتوی . د دی ډلـی آریایی ټولنی دتمدن دبیلګو دزیاتی‌تشریح سره دلته زموږ کار نشته اوجلا بحث غواړی . لکه چـی دمخه ویـل شوی دی زمونږ اساسی بحث هغـه آریایی ډلـه تشکیلوی چـی‌پـه اوسنی افغانستان او نژدی شا او خوا پوری اړه لـری . دغـربـی‌آریایانو (اروپایی آریایانو) دمهاجرت نه ورسته بیا آریایان په دووډلـوویشل کیږی چـی یوه ډلـه یی‌دآمو سیندنه پوری غاړه اوبلـه یـی دجنوبی غاړه آریایان دی . شمالـی اریایان چی اکثره ساکی قبایل وواریـوځه اقلیتونه نور هـم ورسـره ملګری وو پوونده او بزګران ووچی‌د جنوبی آریایانو لـه خـوا پـه (تورانیانو) مشهور شوی دی . تـرډیره وختته پوری پوهانو دافکرکاوه چـی ګوندی هغـه قبایل چی دآمـوسیندنه پورې غاړه پرانه وو او د پیړیو پـه دوران کی یی بیل بیل‌حکومتونـه تشکیـل کـړی دی او د باختری دولت سره تـل په جګـړه‌کـی وو چـی په هندې مناسبت په اوستا او دهغه وخت په نورومذهبی‌آثاروکی دتورانی پـه نامه یاد شوی دی غیر آریایی دی . مګـر اوسینوتحقیقاتو دا ثابته کړې ده چی تورانی قبایل سوچه آریایان اود دوی هـم‌نژاده خلك دی .

جنوبی آریایان د هندوکش جنوبی‌لمنوته دیوه اقتصادی عامل چی‌دور شواو زراعتی سیمو دتوسعی پرابلمؤ دڅوپیړیو په دوران کی راخپاره شول اوبیلو بیلو قبایلو پـه بیلووختونو کـی دنفوسو او مالونو د زیادښت په اثریی له دې ځایونو هم‌مهاجرت وکـړ .

دمادی کلتورونو دڅیړنو په نتیجه کـی پوهانو ته دا ثابته شوی ده‌چی پـه افغانستـان کی بیل بیل مادی‌کلتورونه تیر شوی دی . کـه څه هـم په عنعنوی توګه داسی فکـرکیږی چی ګوندی په افغانستان‌کـی دمادی کلتورونو ډیر لرغونی کلتورپـه باختر کـی تیر شوی دی اونور کلتورونه ددی مرکزنه منشعب شوی‌دی مګر کوم شواهد چـی تراوسـه پـوری دپوهانو لاس تـه ورغلی‌دی‌دډیر ار غونی مادی کلتور بیلګی‌او

آثار دافغانستان په کندهار ـ هیلمند ـ سیستان او کوټه کی موندل شوی دی چی زراعتی سابقه لری .

دسیستان ، کوټی او کندهار مادی کلتورونه چی یوتر بله گاونډی پراته دی یوتر بله ډیر زیات ورته والی لری . بیا وروسته دهیلمند او ایرانی قبایلو د کلتورونو ترمنځ دورته والی پوره اساسات او روابط لیدل کیږی چی دهمدې روابطو په اثر پوهان دا حکم کوی چی ایرانی قبایل دهیلمند له لاری دخراسان او پارتیانا له لاری فارس او میدیاته لیږ دیدلی دی .

## لومړنی آریایی ټاټوبی

دآریایایی توکمونو د خپریدلو اومهاجرتو په لړکی چی بیل بیل قبایل په جلا جلا وختونو کی لیږدیدلی او خپاره شوی دی لومړی دا ضروری ده چی وښیود دوی لومړنی ټاټوبی چیرته او کوم ځای و؟

دا خبره ډیره مشکله ده چی دتاریخ په څوزره کلنه دوره کی دیو توکم ټاټوبی ، خطالسیر ، دنوروسره اختلاط او دژوندانه کړه وړه ټول په قطعی او مستند ډول وټاکل شی ځکه چی ددی تحقیق په مخ کی یو زیات شمیر خنډونه او خلاگانی موجودی دی چی هیڅ امکان نه لری څوك پوره بریالیتوب ته ورسیږی په دی چی له یوې خوا ددې توکمونو دژوندانه زیاته برخه په داسی دوره کی تیره شوی ده چی لیك اولوست نه وله بله پلوه دوی دداسی ابتدایی مواد و څخه استفاده کوله چی ډیرزر ضایع کیدل او یوتر بله متقابل اثرات له څیړونکی څخه لار ورکوی . همدا راز که موندل یو توکم یو ټاټوبی وټاکو، دا مسئله یو تسلسل پیدا کوی چی دغه ټاټوبی ته له کومه ځایه راغلی دی او بیا هلته له کومی خواراغلل او همداسی نور ....

بیاهم له هغه وخته راهیسی چی دوی په ورځنی ژوندکی دفلز څخه استفاده کړی ده او آثاریی له خاوروڅخه راویستل شوی دی اویا دلیك او انځورونو نښی او بیلگی یی تراوسه پورې پاتی دی دهغو په رڼاکی ترکومه حده چی امکان لری دیو توکم تمدن او کلتور تریو څه حده پورې څیړل کیدای شی . همداسوال دآریایی توکم دژوندانه د مختلفو اړخونو په برخه کی هم راولاړیږی او پوهان لاتر اوسه پورې یوی قطعی نتیجی ته رسیدلی نه دی.

زښتو ډیرو ژبپوهانو ، ارکیالوجستانو او مورخینو دبیلو بیلو متودونو څخه په استفادی سره زیارویستلی دی چی دانډو اروپایی

توکمونو لومړني ټاټوبي وټاکي. داموضوع ډیرو پوهانو دخاصو اغراضو او خاصو فلسفو په رڼاکي څیړلی‌ده.ځینو ورته دانه وجرمنی نوم ورکړی دی ځینو آرین( Arian )اوځینو بیانوردیك ( Nourdic ) بللی‌دی.

بیاهم دموجوده اسناد وپه رڼاکی‌پوهان دې نتیجي ته رسیدلی دی‌چی په قبل المیلاد څلور زره کاله کی‌اندو اروپایي قومونه موجودو چی هغه وخت دوی په یوه خاصه‌ژبه خبری کولی چی داژ به داجتماعی دوران له امله ډیره‌ابتدایي وه او دوی یوتر بله سره مفاهمه پرې کوله پوهانو دغه لومړی‌آریایي ژبه په اټکلی طور اریك Aric بللی ده چی دآریایی‌مختلفو قبایلو ژبی اولهجی ورنه منشعبی شوی دی .

پوهان بیاهم په احتمالی توګه دآریایانو لومړني ټاټوبي دهندوکش لمنې او دمنځنی آسیا سیمی اټکلوی.دا سیمه دباختری تمدن په آثارو (اوستا) کی سره اویخه بلل شوی‌ده او دبنکلا ډیر توصیف یی هم شوی دی . نواغلباً اټکل کیږی چی‌دا سیمه به د«بلخ»او «سیر دریا»د سیندونو تر منځ وی ځینی پوهان‌آریانو ویجود بالتیك دبحیری غاړی اوسیمی اټکلوی او ځینی بیا عقیده‌لری چی دتوری بحیری په شاوخوا کی وه مګر په هر صورت زه‌ګومان‌کوم چی أریانا ویجه دټو لو أریایانو لومړی ټاټوبی نه بلکی‌أریانو ویجو (أریان‌ویج) یوازې د هغو آریایانو مسقط الراس اولومړنی‌ټاټوبی وی چی په ویدی او اوستایی تمدن پورې اړه لری . ځکه چی له یوې خوا د آریانا ویجه یادو نه دټولو آریایانو په پاتی شو نومتونو،کتیبو او روایاتو او نورو موادوکی هیڅ وجود نه لری او یوازې دباختریانو په مذهبی اسنادو کی یادیږی او ضمناً دویدی تمدن په اساطیروکی یی داشتراك وجهی او بیلګی څرګندې دې . له بلی خوا دآریایانولیږ داو خپریدل څه په یوه نیټه اویا یوه پیړی کی سرته نه دی‌رسیدلی ، بلکی دارکیالو جیکو اسنادو په بنا آریایان لادحاصل‌ټولولو (ښکار او میوو او بوټو خوړلو) په دوره کی هم سره‌خپاره‌شوی او په بیلو ، بیلو ځایونوکی یی استو ګنی کولی چی له څنګه‌چی دمخه وویل شول په اشتراکی یاطایفه یی دوره کی هم دآمو‌سیند غاړو ته را رسیدلی وو او ښکاری ژوندیی درلود .

له بله پلوه دلیږداو خپریدو اوتولیدی مناسباتو دبدلون په دوره‌کی موږ دآریایانو نښی او بیلګی دچینی‌ترکستان (تورفان) نه نیولی تر میزو پوتومی( Mesopotomy )یعنی‌بین النهرین تر حدودو پورې لیدلای

شو او هم د اوسنی شوروی اتحاد داوکراین پـه مختلفو سیمو او دتورو بحیری په شا او خواکی دیوې آریایی قبیلی (سـاك) دمحلی تمدنونو آثار او علایم پاتی دی .

اریانا ویجه یو داسی ځای و چې دا یشیاد او سنیوتولو اریایی توکمو نـو اسـلاف او نیکونـه او دهغوی عشیری دهمدې سیمی څخه لیږدیدلی دی چـی دکلتوری بقایاو مشابهتونویـی پوهان په شك کـی اچولی دی او حکم کـوی چـی آریانـا ویجـه دټولو آریایانو لومړنی ټاټوبی دی.

آریانا ویجه «اران وج» او (اریانـم ویجو) داوستا پـه استناد د (وانگوهی دیتا) دسیندپه غاره سیمه ده . اوس دا باید معلومه شی چـی دو انگوهی دیتا سیند چیری اوپه کوم ځـای کـی دی ؟

پـه اغلب گومان سـره اران وج دا یگزارت (سیر دریا) او دامو سیند تـرمنځ دآریایانو اصلی ټاټوبی ؤ.وانگوهی دیتا دآمو سیند پاسنـی برخـی ته ویل کیده .

دی خبرې تـه باید پام وشی چې دآریایی قبایلو مهاجرتونه او لیږ دیدنی په یو کال اویا څوکلونو کیـنـه دی شوی ، بلکی دې مهاجرتونو سوونه کلونه نیولی دی .له بلی خواد دوی مهاجرتونه دیوه پلان لـه مخی په کوم مستقیم خط نه وو، بلکی دا مهاجرتونـه ډیر تدریجی اوپـه کرار سره اجرأ شوی دی . پـه دې مهاجرتونو کـی دپوونده خلکو برخه زیاته وه . کروندگرو ډیر کم پخپله خوښه او رضا مهاجرت ته زړه ښـه کړی دی ځکه چی پوونده دښوورشوگانو دپیدا کولو له پاره په مسافرت مجبور وو او کروندگران نسبتاً دیشین او پر یوځای استوگن وو . له بله پلوه څرنگه چی پـه دی دوره کی دشخصی مالکیت مفهوم عام شوی و نود پوونده ومالکیت ددوی سره یوځای هر چیری موجود ومگـر دهقانانو خپل مالکیت له ځانه سـره منتقل کولای نـه شو .

دا خبره هم باید پـه نظـرکـی ونیوله شی چی پوونده توب دکـرو ندگری څخـه دمخه پیدا شوی اوپه تدریجی توگه پوونده کروندگر کیدل مگر داسی هـم وه چې یوه داسی کورنی اویا طایفه به هـم وه چـی هم به پوونده او هم به کروندگران ووهم به یی مالونـه ساتل اوهم بـه یـی دځمکو مالکیت پـه برخه ؤ اودحاصلاتو څخه به یی استفاده کوله او یا معکوس کله ناکله داسی هـم کیدل چـی کروندگران به دڅه مودې نـه وروسته پوونده شول اودځمکی کرکیله به یی پریښودل .

لکه چـی دمخه وویل شول آریایان د(۳۰۰۰ قـم) په حدودو کی





دآمو دسیند په غاړوکی استوګنه درلوده نوپه دې کی هیڅ شك نشته چی د دوی پوونده خلك به دافغانستان دشمالی صفحاتو ورشو ګانوته دهمدې مودې سره سم رارسیدلی وو او دغه لومړنی آریایان په حتماً پوونده اومالداران ووچیوروسته یی دهندوکش په لمنوکی په کرکیله هم پیل وکړ .

په هر صورت اریانا ویجه یا اران‌وج یوازې دویدی او اوستایی مداـ نیتونو داریایانو مقدس ټاټو بی وچی‌دامو او سیر دریا دسیندو نوتر منځ کوم ځای ؤ چی اوس دغه سیمه حتماً دبدخشان په ولایت پورې اړه لری .

دوی د دغه لومړی ټاټوبی څخه دیخ‌او کنګل او دنفوسو اومالونو د ډیربښت له امله لیږ دیدلو ته مجبور شوی دی او دهندوکش په لمنوکی خپاره شوی دی او ددې‌خپریدو په لړکی یی داوسنی بغلان او هندوکش جنوبی لمنوته سر رارسیدلی ؤ . بده به نه وی چی په دغه وخت کی د دوی اقتصادی‌اواجتماعی وضعه یوڅه مفصله و څیړو او په تولیدی روابطو بی‌یوڅه رڼا واچوو :

## په آریایی ټولنو کی دتولیدی‌روابطو بدلون :

څومره چی اریایی ټولنوکی دتولیدی‌مولدو قوتونو خصوصاً مالداری او کرنی تکامل موندہ او وسایل یی‌بشپړیدل او ترقی یی کوله ورسره سم د دې زمینه برابر یدله چی‌د دوی طایفه یی نظام مخ په ړنګید وپیل وکړی او دمالکیت په ظهورسره دټولنی فورم او بڼه بدله شی او طبقاتی تیغونه وټوکیږی .کرنه او مالداری په ټولو ځایونوکی دتاریخ په یوه اوعین دوره کی‌انکشاف نه‌دی کړی ، بلکی یوتربله سره تاریخی اختلاف او توپیر لری. په ځینو سیموکی دنیولیتیك په عصرکی کرنی او مالداری پوره‌پرمختګ کړی و ، مګر په ځینو ځایو نوکی کرنی او مالداری دزیږ و(مفرغ) په دوره‌کی انکشاف وکړ. خوبیاهم په عمومی ډول سره دپوره‌پرمختګ او انکشاف عصر دمسودوره ( Chalcolithic ) یا (Eneolithis) عصردی.

دآمو سیند نه پوری غاړه آریایانوکی (یعنی هغه وخت چه دوی لاپوره خپاره شوی نه وو ) دا دوره‌دمیلاد نه مخکی څلور زره کاله پخوا پیل کیږی . دمسو په کشف اودهغه دخواصو سره دبلدیت په برکت د دوی دژوندانه په چاروکی لوی‌بدلون راغی . دوی دمسو په ویلی کولو پیل وکړ چی دتیږو دتبیودپاسه به یی دډیر اورد حرارت‌په

ذریعه ویلی کول . سره له دیچی د مسو په کشف سره د دوی دژوندانه په چاروکیپوره تحول راغی ، مگر بیا هم دی فلز ددوی اړتیاوی پوره لیری نه کړای شوی ، ځکه چی مس ډېرو څخه پاسته وواونه یی ونیښیغوځولا ی شوې اودتبرونو خولی یی په ځمکه کی زراو ښتلی او له منځه تلل . دوی دمسینو الاتو په څنګ کی دبکرینو او هډوکینوالاتو څخه هم کار اخیست دوی دمسوپه څنګ کی دقلعی په کشفهم بریالی شول ، مگر قلعی دمسو څخه زیاته پسته او نرمه وه‌او ددوی داړتیا په برخه کی یی‌پوره مرسته ونه شوه کړای. دوی دزمانیپه تیرید وسره په دې بریالی شول چی مس او قلعی سره ګډکړی او یو نوی شی منځ ته راوباسی چه هغه زیړ یامفرغ وو . داګډشیهم دمسو اوهم دقلعی نه کلك ؤ. دزیړ و دوره دمیلادنه ۳۰۰۰ کاله پخوا منځ ته راغلی ده ، مگرترویج اوانکشاف یی ډېر تدریجی واوډېرپه‌ورو ورو رایج شول ، ځکه چی له یوې خوا مس ، قلعی اوسربپه طبیعت کی ډېر لږ پیداکیږی اوله بلی خوا ددې فلزاتو استخراجپه هغه وخت کی زښت ډېرمشکل کار ؤ . دمعادنو استخراج ډېرورروسته او دمیلادنه مخکی په (۲۰۰۰) شا او خواکی انکشاف وکړاو دغه وخت دوی بریالی شول چی دمعادنو دویستلو له پاره ډېراوږده‌او پراخ تونلونه وکاږی چی تر (۱۰۰) مترو پوری یی اوږ دوالیرسید .

دفلزی الاتو څخه استفاده دلر ګیصنعت او استفادی په انکشاف کی پوره اغیزه درلوده اود دوی په ژوندانه کی یی‌پوره تحول راوست، ځکه چی دوی موفق شول چی دپخوا په نسبت کلك سمبال او مزبوت کورونه او خونی جوړی کړی.

دوی په همدې دوره‌کی په یوه‌مهمه اختراع بریالی شول او هغه دا چی دهمدې فلزی الاتو څخه په‌استفاده یی دلرګیو څخه ارابه یا څرخ جوړ کړ چی دلومړی ځل‌لپاره په ختیځ کی جوړ شوی دی اوپه اروپاکی (۵۰۰) کاله وروسته یعنی د (.۲۵۰ق‌م) په شا اوخواکی وپیژندل شؤ بیا هم سری دا ادعاپه کلکه سره نه شی کولایچی ارابه یاڅرخ یوازې اومنحصر بالفرددآریایی توکم اختراع وه اوپه نورو پورې اړه نه لری ، مگر داسی شواهدډېر موجود دی چی اریایانو دڅرخ اویا ارابی څخه په همدې دوره‌کی‌استفاده کړی ده او استعمال کړی یی دی .څرخونه یاارابی د ختیځپه اکثرو سیموکی رایجی وی .
په ختیځ کی دڅرخونو دپاسه نوری تختی نصب کیدلی او په

دې توګه دګاډی جوړول منځ ته راغلل . دا ګاډی به د نرغوایی په واسطه راښکل کیدې او دوی به دباړونو وړلو او نورو تشریفاتی چارو له پاره تری کار اخیست .وروسته بیا په عسکری او سوق الجیشی مسایلو کی هم تری کاروا خستل شو .ګاډیو یو وخت دو مره اهمیت پیدا کړ چی دلویانو او مقتدرو کسانو دسپرلی یوازینی وسیله وه . دا څرخونه په لومړی‌وخت کی دیوې ټوټی لرګی څخه جوړیدل مګر وروسته یی د دروندوالی دورکاوی له پاره تحول وکړ او دپره دارو څرخونو په جوړولو بریالی شول . پره‌دار څرخونه تقریباً دمیلادنه (۲۰۰۰) کاله دمخه جوړشوی دی چی ددی سپکو ګاډیو په راښکلو کی داس نه استفاده کیدله .اریایانو دزیړو په دوره کی د مالداری په برخه کی پوره انکشاف‌وکړ اود پووند ه وداسی ټولنی یی جوړی کړی چی دموسم په تغییرسره به یی دمالونو دښی روزنی او پالنی په منظور منظم موسمی‌مهاجرتونه پیل کړل چی دآس او خره څخه یی دیوی عمده وسیلی‌په توګه کار اخیست اود نورو قومونو څخه یی په تحرك اویون کی‌پوره امتیاز درلود او مالداری یی داقتصاد یوه عمده برخه وه .

په دی وخت کی دوی دکروندې اومالداری دنوعیت په لحاظ په دریو ډلو ویشلای شو .لکه څنګه چی‌دمخه وویل شول یوه ډله هغه وه چی یوازی په کرونده بوخت وواوځایی استوګن وو . بله ډله خاص پووند ه وو چی دکرنی سره‌یی کارنه درلود . مګر د دوی اکثریت داسی خلك وو چی هم یی کر کیله اوهم مالداری کوله . کله به یی زراعتی نباتات وکرل او دپخوانی‌فصل حاصل به یی واخیست داوړی په موسم کی چی په دښتو اوورشوګانو کی به واښه خلاص شول اویا به‌دګرمی په واسطه وچ شول‌نو دوی به مجبور شول چی سړو سیمو اودغرو لمنو او ورشو ګانو ته‌خپل مالونه بوځی . دوی به ۳ـ٤ میاشتی په غرنیو ورشوګانو کی‌اوسیدل او دمنی په موسم کی به دخپلو حیوانی حاصلاتو سره یوځای‌تودو سیمو اویا خپلو اصلی ټاټوبو ته راوکو چیدل . د دوی یوشمیرداسی مالداران هم وو چی اصلی وظیفه یی کرونده وه او دیشین وومګریو شمیر څاروی به یی ساتل چی دخپلو کروندو دوښو په‌واسطه به یی روزل او دخپلو مالونو څخه به یی لازمه استفاده کوله . دداسی‌ډول خلکو چی مالداری یی دکرنی په څنګ کی یوه فرعی رشته بلل‌کیده مالداری یی انکشاف وکړ او داسی هم وشول چی ډیر کروند ګرپه پووند ه واو پووند ه په کروند

گرو واو بنتل ، مگر دلته باید پام وشی چی په هرکسب کې قبیلوی ارتباطاتو پوره دخل او نفوذ درلود.

آریا یان دنور و قومونو څخه وروسته داوسپنی سره آشناشول او دزیږونه ډیر وروسته یی .داوسپنی څخه استفاده وکړه . دا وسپنی نه استفادی واقعی نیټه د میلادنه (۲۰۰۰) کاله مخکی شاوخواوخت دی . چې په همدې موده کی یی په استفادی لومړی پیل کړی دی . دې فلز دخپلو ممتازوخواصو له کبله ډیر زر عمومیت پیدا کړ اواوسپنیزو وسایلو داکثرو پخوانیووسایلو ځای ونیو . له بلی خوا دنورو فلزاتو په استخراج کی هم زیاته استفاده ورڅخه وشوه.

څرنګه چی اوسپنه په طبیعت کی دنورو فلزاتو په نسبت ډیره پیدا کیدله نو ډیرزر یی تعمیم پیداکړاو دخپلو اړتیا وړکلك موادیې په زیاته اندازه ورڅخه جوړکړل.داوسپنی څخه یی لومړی تبر،ګینتی ، لور ، یوم او داسی نورشیان جوړکړل چی دی وسایلو دوی په دی قادر کړل چی ځنګلونه غوڅ کړی پټی او دکروندې وړځایونه په کی جوړ کړی . یوه او قلبه هم په ابتدایی توګه منځ ته راووتله اود لومړنی صنعت زمینه ورځ په ورځ برابر یدله .

دکروندی تاریخ په ختیځ کی دمیلادنه (٤٠٠٠) کاله پخوا وخت ته رسیږی اوپه اروپاکی دزراعتی کلتوری نښی نښانی دمیلادنه (۳۰۰۰) کاله پخوا ته رسیږی . آریایان هم دختیځ دنورو ملتونو په څیر په اټکلی ډول د ق م ( ۳۵۰۰ ) کلونو په شا او خواکی دزراعتی کلتور خاوندان وو .

## یو مهم اجتماعی او حیاتی بدلون

دکروندې او مالداری په انکشاف او ورسره موازي دژوندانه دنورو وسایلو دپراختیا سره یوازی دآریایانونه ، بلکی داکثرو ټولنو اوقبیلو په ژوندانه کی ورو او په تدریجی توګه یومهم تحول او بدلون راغی او اجتماعی پخوانی انسانی موقفونه او موقعیتونه یی سره ګډوډ کړل .

دکار دانکشاف په ذریعه دانسانانو فکر او شعور هم ترقی اووده کوله او نوی تعبیرونه او رواجونه او حتی مذهبی قواعد او اصول وضع او جاری شول چی په لاندې ډول په پری یوڅه رڼا واچوله شی.

دین هم دنورو اجتماعی پیښوتر څنګ انکشاف کاوه .آریایی ټولنو دکرنی او مالداری دانکشاف په وخت کی یو لړ محیطی ماورا الطبیعی سمبولونه او معنوی مظاهر نمنځل چی دټولو ریښی او بنیادونه

او علل طبیعی او مادی وو . په دوی کی تعدد نمانځنه یا( Polothism
رایج ؤ او ټول هغه مظاهر او موادوچی دوی ترې دفیض اوبرکت اومادی نعمتونو د ډیرښت اوسمون طمع لرله اویا هغه قواوی او شیان چی د دوی دمادی نعمتونو دضرر اووتهی سبب کیدل دارباب الانو اعو په توگه نمنځل اود هغوی دخوشحالولو پــه منظوریی هریو ته مخصوص عبادات او مخصوص قربانی کولی ، دهریورب النوع له پاره یی دستاینی اونمنځی مخصوص الفاض او عبارات او حتی تاریخی اساطیر درلودل . قربانی بـه اکثراً دمالونو غوښی ، لبنیات،طبیعی او کرلی نباتات او محصولات وو .

د دین پــه انکشاف سره بیلا بیل اجتماعی موقفونه رامنځ ته کیدل او تخصص ظهور کاوه .

کله چــی دکار په ذریعــه فکــرانکشاف وکړ نو دوی دخپل محیطاو ماحول پــه پیژندنه کــی تــریوې اندازی دپوهی خاوندان شول او د طبیعی غرایزو دانکشاف په مرسته یــی دخیر دجلب اوشر د دفع له پاره دطبیعت پــه مظاهرو پوره غور اوسوچ وکړ . څرنگــه چــی د دوی ذهن پــه دغه وخت کی د انکشاف پــه خاصه مرحله کــی ؤ او دوی دطبیعی افا تو او مضراتو ددفع اوځان ساتنی پــه قوه سمبال نه وو علتونه یی نشــوی درك کــولای نــومجبوراً یی دغو قواوتــه پــه میتا فزیکــی او ماوراالطبیعــی منابعو اوعلتونو قایل شول . دین هــم دهغه وخــت یــو اجتماعی ضرورت ؤ چــی څــو ټولنــه تریو حده پورې پــه فکری لحاظ بسیا او قانعه کړی .

دمذهبی مراسمو پــه انکشاف سره پــه ټولنه کــی خاص اشخاص پیدا شول او طبقاتی بنی ظهور وکړ .
دهرموقف خلکــو دخپل ځان اوکټــودټینگوالی له پاره هڅــی پیل کــړې اومذهبی حلقو هم دخپلو منافعو په منظور دقربانی مراسم دې حدتــه ورسول چــی دارباب الانواعو د خوشحالی رازیی په همدی کــی وباله . کله ناکله بــه یی ددښمنوقبیلو سره دجنگ پــه صورت کــی دمخالفی قبیلی بندیان هــم دقربانی اونذر په توگه خپلو ارباب الانواعو لــه پاره قربانی کــول اویا بخښل ،مگــر څومره چــی ټولنی انکشاف کاوه اود تولید وسایلــو ، مناسباتو اومنابعو بدلون پیدا کــاوه د جنــگ بندیان بیانه وژل کیــدل ، بلکــی روحانیونو اویا مقدسو ځایونه تــه بخښل کیدل چــی پــه کار کولو کی ورڅخــه استفاده وکړی .
له بلی خوا داقتصادی مناسباتو په پراختیا سره هم دبندیانو ســره

په سلوك كې تغيير راغی اودمرګ پر ځای یې دهغوی دکار څخه ابتدایی استفاده پیل کړه . دغه وضع په اجتماعی تاریخ کې ډېر اهمیت لري اوپه اجتماعی مناسباتو کې خاص باب پرانیزی چی دمریی توب په دوره شهرت لري . البته دې خبری ته باید پام وشی چی دشرق دغه اجتماعی دوره دغرب (یونان او روم) دمریی توب سره په څواړ خونوکی یو شه توپیر لري اودغربی مریی توب د دورې په بڼه باید ونه ګڼل شی ځکه چی دلته دتولید طرزاو مناسباتو یې دغرب سره اختلاف درلود .

مریی توب په لومړیو وختونوکی ډېر ابتدایی حالت درلود . حتی د ځینو خاصو خلکو څخه پرته چادې ته غاړه نه ایښوده چی یو پردی او اجنبی شخص پخپل کورکی وساتی. کله چی کروندې انکشاف وکړ باغونه او دمیوو مختلف النوع بوټې وروزل شول اوغوره میوه لرونکی ونی او بوټی اهلی ا وکینول شول ور سره په څنګ کی پټی او ویالی دیوم او ګینټی په واسطه جوړ شول مالداری هم پرمختګ وکړاو داهلی حیواناتو لویی پادی او رمی منځ ته راغلی قلبه اویوه اختراع شوه داوسپنی او نورو فلزاتو ډول ډول الات داستعمال وړ وګر ځیدل دکار او زیار محصولات په هراړ خیزه توګه پریمانه او زیات شول نود کروندګرو ترمنځ د ذخیرې او زیرمی فکر او اندیښنه پیدا شوه .دوی به خپل مازاد محصولات په خوندی ځایونوکی ذخیره اوپا سره کول.

مالدارنو هم په پریمانه توګه دخپلو مالونو څخه شوده ، غوښه ، وړی ، پوستکی ، لیمڅی ، هډوکی اووچه سره تولیدول یعنی دواړه ډلی په دی بریالی شول چی دخپل لګښت نه زیات تولید وکړی. کروندګرو هم ورځ په ورځ دخپل ځمکنی مالکیت سیمه پراخوله او لاانکشاف یی ورکاوه .

همدا دلګښت نه زیات تولید داستثمار او مریی توب اود مریی توب دانکشاف اصلی او محوری عامل وګرځید اوتصاحب او شخصی مالکیت ورځ په ورځ پرمختګ کاوه .

پخوا به چی کله قبیلوی جنګ پیښ شونو فاتحو قبیلو به دجنګ بندیان وژل اویا به یی خپلو ارباب الانواعو ته قربانی کول . په دې وخت کی نور دا بندیان نه وژل کیدل اود دې ضرورت پیدا شوچی دهغوی دکار او زیارنه د خپلو حاصلاتو د ډېرښت له پاره منظم کار واخلی او دانسان نه دبل انسان داستفادی په پیښی سره دمریی

توب دوره عملا پیل شوه .

دې خبرې ته هم باید پام وشي چې دمریی توب عوامل لومړی په کروند ګروکی پیدا شول ځکه چې‌دا شرایط لاپه مالدارانو کې منځ ته راغلی نه وو . همدا رازیی‌په کروند ګروکی دیر انکشاف وکړ مګر په ډیرو مالدارو قبیلو کې دا دوره‌هیڅ راغلی هم نه ده . له بلی‌خوا باید متوجه اوسو چې په افغانستان‌کی دپخوا وختو نو څخه ترهمدااوسه پورې ډیر زیات قبایل په عنعنوی‌توګه مالداران پاتی شوی دی او د دې هیواد یوزیات شمیر نفوس ددې دورې یعنی مریتوب څخه بچ پاتی شوی اوعلت یی د شرایطو نشتوالی ؤ .

دهمدی دوری په پیل سره په ټولنه کې طبقات منځ ته‌راغلل او دبډای او بیوزلی مفاهیم او موقفونه‌په جلا جلا ډول سره وټاکل شول اوتر منځ یی حدود معین شول . دنرو او ښځو دواړو څخه دمریانو‌په توګه کار اخیستل کیده . دقبیلواواشخاصو تر منځ دمالو نو دلوټو لوله کبله جنګ او جګړی پیل شوی اوهرچااوهری قبیلی دخپل نفوذ دقلمرو دپر اختیاله پاره هڅی او نښتی‌شروع کړی چې په دې جګړوکی به دمقتدرو او بډایو روحانیونوزیات لاس ؤ . په هره ذریعه به‌یی دخپلو مفادو په خاطر دا ډول سوق‌الجیشی کار ونه روا اوګڼور کار باله . مغلوبین به دخپلومالونوسره یوځای دغالبانو مال اوحتی شخصی مالکیت ګڼل کیده .

دمریی توب ظهور په واقعیت کی‌دتولیدی قوتونو دتکامل نه راپیدا شوی یوه طبیعی منطقی اجتماعی‌پیښنه ده اوپه هغه وخت کې دیوه اجتماعی پرمختګ نه راپیدا شو. له بلی خوا مریی توب دکارویش اسان کړ .

دمریی توب پخوانی شکل او فورم‌دپلار مشری (Patriarchal) مریی توب دی . په دې وخت کی‌یومریی دتولید په چاروکی پوره اغیزه نه درلوده بلکې دیوه آزادانسان په څیراو دیوه ملګری او مرستیال په توګه به‌یی په کورنی‌کی ژوند کاوه ، او مریانو نرو او ښځوته هغه وخت دنورو آزاد و ا[illegible]سانانو سره دګډ ژوند او اختلاط حقوق ورپه برخه وو . مریانو نرواوښځو به دآزادو ، یعنی غالبانو سره واده هم کولای شو او ماشومانو به یی هم سره یوځای لوبی کولی ، چې ترڅو به دزمانی په تیریدو سره مریان په هماغه غالبه قبیله کې ورک او منحل شول او دددوی زوزات به دهماغی قبیلی‌فعال غړی شول اود قبیلی په ټولو مراسموکی به‌یی بی‌له کوم توپیره

ګډون کاوه . مګر بیاهم باید داخبره هیره نه کړو چې دلومړنیو مریونو دمرګ او ژوند واك به دخپلوخاوندانو په لاس کې ؤ .

## دکالیو تولید :

دکروندې او مالداری په پراختیاسره داجناسو مبادله هم رواج شوه او پر مختګ یی وکړ .دزمانی په تیریدو سره دژوندانه په ټولو اړخونو کې بدلون او انکشاف پیداشو ژوند دبسیط والی نه دترکیب او مغلقتیا خواته روان ؤ . نورهرچاپه ځانګړی ډول نه شو کولای چې پخپله هم غذایی مواد تولیدکړی ، هم وسله جوړه کړی اوهم دکروندی اویا دکور سامانونه جوړکړی . بلکی ژوند یوځه مغلق شو اودهر فن او کسب له پاره دتخصص‌او مسلك ضرورت پیدا شو ، چی دهمدی اړتیا له کبله خاص کسبونه‌او مسلکی فنونه منځ ته راغلل .

لاسی صنایع دکروندی څخه جلاشول او دتبادلی بازار ورځ په ورځ تودیده دآریایانو تر منځ دفلـزی‌صنایعو سره آشنایی دمیلادنه دری یادوه نیم زره کاله پخوا پیل شوی‌وه . د دوی پښان داوسپنی دپیدا کولونه وروسته دسندان ، پـلك،امبور ،قلم او سوهان سره بلدشول او وروسته یی ورنه په پراخه پیمانه کار اخیست . د فلز کاری انکشاف دترکانی صنعت ته هم‌پراختیا ورکړه او په ټولنه کی یو شمیرخلك دپښ او ترکاڼ په نامه‌او صفت منځ ته راغلل . مسلکی اوحرفه یی کلالان هم پیدا شول اودڅرخ په پیداښت سره کلالی‌هم پرمختګ‌وکړ اودلاسی حالت نه دڅرخ په واسطه کلالی هم‌پوره پرمخ لاړه .

دکلالانو او پښانونه پرته نورصنعت کاران ، لکه : ترکاڼان ، جولاګان او تیرې توږونکی هم‌پیداشول چی په‌پای کی دصنعت او کروندی ساحی هم دانکشاف له کبله سره جلا شوې .

دکالیو تبادله به پخوا په‌انفرادی صورت نه‌وه بلکی د دوی دمشرانو او سپین‌ږیرو او سپین‌سرو په واسطه به‌اجرا کیدله چی د بلی طایفی اویا دشپنو او کروندګرواویا حاصل ټولوونکو ترمنځ به کالی دهرې ټولنی دمشرانو په واسطه مبادله کیدل اوعوض اجناس به یی پخپله مربوطه ټولنه کی په مساوی‌توګه ویشل . یعنی دیوی اشتراکی ټولنی مالونه به دبلی اشتراکی‌ټولنی سره جنس په جنس بدلیدل.

داځکه چې په یو واحده ټولنه کې به یوازې یوجنس تولیدیده اوپه بله کې به بل جنس . نوپخپله په ټولنه کې دننه تبادله ناممکنه وه مګر وروسته دا راز تبادلې په هره ټولنه کې دننه هم ممکنې اورایجې شوې اود نورو اړخونو دیرمختګ سره موازې په تبادلو اود تبادلو په نوعیت کې هم تحول اوبدلون دوڅاره شو . کسب ګرو اوصنعت کارانو به خپل صنایع ددهقانانو اوشپنو داجناسو سره بدلول اویابه یې دخپل کار په مقابل کې په قراردادي توګه دحاصل څویمه برخه تری اخیستله . د دوی ترمنځ به داړتیاوړ تړونونه هم موجود وو یعنې کسب ګران به په دې مکلف ووچې دهغوی داړتیاوړ کافې مواد برابر کړي او په مقابل کې کسبګرو هم په دوی حق درلود چې لازم او ضروري مواد او اجناس په عوض کې ورکړي . دا تړونونه به هم دزمانې په تیریدو سره بدلیدل او کمې او کیفي تغییرات به په کې پیدا کیدل .

جنس په جنس تبادلې هم دزمانې په تیریدو سره ورو ورو انکشاف وکړ اوځینې خاص اجناس دمواد ودقیمت په توګه وټاکل شول .اجناسو قیمت پیدا کړاودقیمت معیار ځینې شیان لکه صدف، قیمتي فلزات ، قیمتي کانې او داسې نورتعین شول .

د اجناسو دقیمت پیدا کولو سره جوخت دذخیرې او ثروت غونډ ولو فکر پیدا شو اوخلکو داجناسو پر ځای داجناسو دقیمت په ذخیره کولو پیل وکړ ځکه چې اجناس دمودې په تیریدو سره ورستیدل او خرابیدل ، مګر پخپله قیمتي فلزات لکه سره زر ،جواهر او صدف هیڅ نه خرابیدل اوله بلې خوایې کولای شول چې هر وخت پرې د خپلې اړتیاوړ مواد واخلي .

دقیمت ټاکنې داجناسو په تبادله کې ډیرې اسانتیاوې راوستې اوله بلې پلوه په ټولنه کې د زیات اجتماعي تحول سبب شو . څومره چې مبادلې تکامل کاوه اود ارزښت مفهوم لا دقیق شو پیسه دار زښت دمقیاس اود کالیو دګرځیدو په توګه لاخپل ځان څرګنداوه او جنس په جنس تبادلې ( (Troc) )خپل ځای پولي تبادلې ته پر ینبود.

دکرکیلې او مالدارې او ورسره جوخت دتبادلې په انکشاف سره هم په کورنې او هم په طایفه کې زور اجتماعي تغیرات منځ ته راغلل . په طایفه کې اجتماعي طبقات او حرفه یې صنوف پوره څرګند شول اوپه کورنۍ کې هم کله چې نارینه داقتصاد پوره واکمن شو ، نواجتماعي موقف یې هم لوړ شو . ښځه چې مخکې د پوره اقتصادي واکمنې خاونده وه او لوړاجتماعي موقف اومقام یې درلود دخپل

موقف نه‌یی تنزل وکړ او ورځ په‌ورځ یی واك له‌لاسه ورکاوه . د کـورنه دباندې څه چی په‌کورکی‌دننه یی‌هم هغه پخوانی حکم چلول له لاسه ووتل او مهم علت یی داوچی ټولی اقتصادی منابع اود تولید وسایل دنارینه ولاس ته ورغلل اودتولید په ټولو اړخونوکی دحاکمیت او واك خاوند شو .

مگر داخبره باید په یادولرو ،لکه څنگه چی دمخه وویل شول، دتمدن داسریع او منظم بدلون په‌کروندگرو کی ډیر پرمختگ وکړ اودیشین خلك ددې اقتصادی تحولاتومراکز وو . پووندە قبایل داقتصادی شرایطو له پلوه دې مرحلی ته‌رسیدلی نه‌وو . نودغه بدلون هم په دوی کی دومره محسوس اوڅرگند نه و .

له بله پلوه سره له دېچی‌په ځینو ټولنو کی داقتصادی تغیراتو دغو شرایطو ډیری آریایی‌قبیلی دخپل تاثیر لاندی‌همدی مرحلی ته راوستی وی مگر ډیر داسی‌قبایل په آریایانو کی موجود وو چی داقتصاد په همدی مرحله‌کی‌بیا هم ښځه دپوره واك اوقدرت خاونده وه . ددې خبری مصداق‌په‌تاریخ کی ثابت دی ، ځکه چی هغه وخت هم په سارماتی Sarmati )قبیله کی‌ښځی‌بیا هم نسبتاً ښه اجتماعی موقف‌درلود . ځکه دې طایفی اسونه درلودل او داسونو پادی (گلی) یی‌درلودی (۱) ښځویی عیناً دنارینه ؤ غوندی داسونو په روزنه او پالنه‌کی پوره لاس درلود او دنارینه وغوندی یی وسله اچوله اوښځی‌هم په آسونو سپریدلی .

له بلی خواپه غرچه قبایلو( غرجستان او دپامیر اصلی او سیدونکی ) کی دښځی مقام هیڅ‌تغیرنه وموندلی او هماغسی دتولید اواقتصادی منابعو او وسایلو واکمنه‌وه او له دې امله‌یی دنارینه و څخه مقام او موقف لوړ ؤ . ددې‌حالت بقایا اوس هم په غر چه قبایلو کی وجود لری . دمثال په‌توگه دغور دغلمین په دره‌کی اوس هم ټول اقتصادی منابع دښځوپه واك کی دی اودکور مشرتوب دنارینه پرځای دښځو پرغاړه ده .همدا اوس په دې سیمه کی یوه ښځه کولای شی چی خپل‌میړه له کوره وشړی اود ډیرو بر خو څخه یی محروم کړی .

داسلام دورتگ نه پخوا په‌نورستان او شاو خوا نورو سیموکی هم دښځی د واکمنی ډیری بیلگی‌موجودی وی او څرگنده محسوس کیدلای شوه چی ښځه دنارینه وسره سم او برابر حقوق لری ،

(۱)دافغانستان تاریخ په روسی‌ژبه‌دښاغلی دوست په مننه

بلکی دلازیات لوړ موقف خاونده وه‌او اوس یی‌هم ډیر اثرات اوبقایا پاتی دی .

بده نه ده چی دواکمنی د دغه‌مسیر انتقال ته یو څه پام راواړوو:

دمور مشری یا موروواکی نه پلارمشری ته انتقال ورو ، سست او په تدریجی توګه‌ او اوپه راز رازډولو نویی انتقال موندلی دی . پخوا به ماشومان یوازی مورته منسوب‌وو اود مور نسب دپلار په نسبت امتیاز درلود . لکه چی دمخه وویل‌شول په غلمین کې اوس هم زوزات ټول دمور په نامه خلك‌پیژنی اود پلار په نسبت هیڅوك شهرت نه لری . مګر اوس دښوونځیو، حکومتی ادارو اود نورو سره دتماسو نو دفشار له امله دغه وضع‌ورو ورو تحول کوی او فورم‌یی ورځ په ورځ اوړی ،

مګر وروسته یوازی دپلار طایفه‌دماشومانو اولیا ګڼل کیدل اودمور دطایفی سره به یی هم روابطدرلودل مګر په هغه اندازه نه‌چی دپلار په طایفه پورې په مربوطګڼل کیدل .

دمور مشری په نظام کی واده هم‌د ماتری لو کال (Matrilocal) په سیستم و .

(یعنی میړه به دښځی کورنی ته‌راودیده ) اود ښځی دطایفی سره به یی استوګنه کوله چی دی‌وضعیت دپلار مشری په دوره کی بدلون وموند او معکوس حالت یی‌غوره کړ . له بلی خوابه د واده په مسله کی میړه او ښځی دواړودانتخاب حق درلود . مګر وروسته دا حق یوازې پلار ته حاصل ؤ اوبل‌چاپه کی مداخله نه شوه کولای اوله دی وروسته د پلار مشری‌کورنی منځ ته راغلی . دطایفی اشتراك یوازی دکورنی اشتراك ته‌راټیټ شو اود پلارنی نسب نه‌پیدا ځو نسلونو به دتولید دمشتر کومنابعو څخه استفاده کوله اود یو میړه( (Monogomy) )کورنی‌جوړه شوه . ښځی له دی وروسته په یووخت کی له یومیړه نه‌زیات کولای نه شول اود ښځی‌په ناسته ولاړه او اجتماعی روابطوباندی اجتماعی ضوابط او مقررات وضع شول . ښځه دنارینه په‌متابعت مکلفه شوه مګر په مقابل کی نارینه چی په جنسی روابطوکی آزادی لاس ته کو له او کولای یی شول چی د خپلی ښځی نه پرته دجنګ په بندیانو کی د نورو ښځو (وینځو) سره هم بی له‌رسمی‌واده په آزاده توګه جنسی روابط ولری .

دښځی مقام په ځینو ټولنو کی‌دهمدې تحولاتو له‌کبله دومره‌راټیټ

شو چې دزمانې په تیریدو سره ښځه هم دنورو مالونو غونډې دمیړه دمړینې سره ژوندی وژل کیده (په هند کې دستی( (Sati) )دود او دستور او دنور ومالو نوسره به یوځای په خاورو کې منډل کیده دارسم په نورو آریایانو کې هیڅرایج شوی نه دی او په ا یرانی افغانی آریایانو کې هیڅ سابقه نه لری ، بلکې دا دود یوازی په هندی آریایانو کې معمول او مروج شو.

## دشخصی او خصوصی مالکیت پرمختګ

کله چې په یوه قبیله کې دتولید دتکامل له کبله نابرابری منځ ته راغلې له هماغه وخته یو هیرارسی ( (Heirarchy) ( دمراتبو سلسلی ) سیستم راپیداشو چې دلوړی ځل له پاره یې پښان او بیا نور اهل کسبه په یوکاسب تبدیل کړل اود پلار مشری په کورنی کې هم دثروت توپیر رادوڅاره شو . ځینو کورنیو غوره او ډیرې ځمکی ونیولی او خپل ملکیت یې کړ چې ځینو به یې په ځنګ کې مریونه او رمې هم درلودې مګر په مقابل کې به یې نورتش لاس او بیوزلی وو .

له بلې خوا په طایفه یې دوره کې چې مشران به اکثره په انتخابی توګه ټاکل کیدل اود دوی ترمنځ دمتقابلې همکاری نه پرته نور څه نه وو دخصوصی مالکیت په دوره کې دا وضع واوښتله اود ثروت په تمرکز سره دوراثت مسئله هم دوڅاره شوه چې دهر پلار میراث به بې له کومې دعوی اوجګړی څخه نارینه اولادته انتقال کیده اودخپل پلار دمادی او معنوی ارزښتونو مالك او خاوند به ګڼل کیده . (۱)

له بله پلوه پخوا به مشرانو دطایفی دغړو ترمنځ داجناسو د مساوی ویش او دعدالت د تامین وظیفه درلوده اوکه خپل وظایف به یې سرته ونه رسول نودغړو له خوا به معزولیده مګر په دی دوره کی دا وضعیت بیخی له منځه لاړ. مشرانو ، متنفذینو او چالاکانو د خپلی خصوصی مالکیت په پراختیاپیل وکړ اود تولید منابع یې په خپل لاس کی ونیولی او ضمناً یې دخپلی شتمنی دساتنی په منظور سیاسی قدرت هم ترلاسه کړ دمریانو په موجودیت سره یې دخپل سیاسی نفوذ لمن پراخه کړه دتولیدی منابعو په تصاحب سره په مقابلو جهاتو کی بیوزلی اوتش لاسی پیداشول چې دهمدې ناداری په موجودیت

(۱) تاریخ جهان باستان ۹۷ مخ

سره احتیاج اوپه نتیجه کی داطاعت مسئله رامنځ ته شوه اودپلار مشری داشتراکی ټولنی شتمنی یې دخپل ځان کړه . دقولبې په پیدایښت اود کروندی په تکامل سره انفرادي تولید هم پرمختګ وکړ او داتغیرد دی سبب شو چی لویه ټولنه لـه دننه پلوه ګډه وډه شوه دلویی کورنی په منځ کی نوری وړی کورنی راپیدا شوی چی هری یوې خصوصی شته منی ، ټاټوبی اوبیل خوراك درلود .

دخصوصی مالکیت پر مختګ ورووړو دثروت دخپریدو مخه ونیوله او دنارینه اولاد موروثی حقوقو استحکام وموند . دوراثت دټینګیدو سره سم اقتصادی او اجتماعی قدرت هم ورپه برخـه کیده اوله بلی خوا دنجابت ، ټیټوالی ـ شرافت او سپکوالی مفاهیم پـه ټولنه کی رایج شول . دقدرت اوثروت خاوندان نجبـا اواشراف او غریب اوبی وزلی خلك ټیټ او سپك وګڼل شول .دا مفاهیم او احکام هـم دقدرت پـه ذریعـه پـه خلکو ومنل شول . یوازی نجباواو اشرافو به په خپل نوم اونسب ویاړ کاوه اود خپلو نجیبو او شریفوپلرونو او نیکو یادونه بـه یی کوله چی دنجابت مفهـوم هـم ورو وروموروثی بڼـه پیدا کړه . میتافیزیکی انګیر نو او ماورا الطبیعی عقاید ودقدرت دخاوندانو دقوت دمزبو تولو پـه لارکـی پوره مرسته وکړه .دروحانیو نو او اشرافو ترمنځ متقابله همکاری ورځ په ورځ پسی ټینګیده او یو رایج معمول او دو دشو.

بیوزلی کورنـی هم پـه وړو اوکوچنیو نورو کورنیو وویشل شـوی اود محیط دتنګوالـی او بیوزلی لـه امله تیښتی تـه مجبور شـول اود ژوند دسمون او رغاونی پـه نیت یی نورو سیموتـه کډی وکړې . دوی ناچاره ووچی بلـه طایفـه او بل ځای کـی هم دیورئیس اوبډای پـه تحت الحمایه کـی په نیمه مستقله توګـه ژوند وکړی .

لـه دي وخته وروستـه هغـه پخوانی طایفه ای قبیلوی روابطورو وروله منځه لاړل اود خپلو خپلوانو ټبرونو سره دمینـی اواخلاص ځای دملکیت او قدرت مینـی او عـلایقوونیو . د دوی روابط بیا پـه خپلوی اوعزیز ګلوی بنانه وو ، بلکـی دګاوندیتوب پـه روابطو بنا شول چی دي راز ټولنو ته ګاوندی اشتراکی(                ) ټولنی وایی.
داسـی ټولنی چی ځینـی وړی اوځینی یـی لویی وی هم دقومی اوهم دمختلفو طایفو دافرادونه متشکلی شوی وی چـی دیو ثروت دخاونـد ترلاس لاندی اداره کیدل ، مګر پـه دواړو صورتونو کـی نور دوی یو تربله خپل ځانونه خپلوان نه ګڼل .د داسی ټولنو پـه تشکل سـره اقتصادی فعالیت پوره رونق پیداکړ.ګاونډی ټولنی بیاهم یوځه ناځه د

طایفه ای خواصو او عاداتو خاوندانیوی او پخوانی خصلتونه یی بیخی لـه لاسـه ورکړی نه وو .

اشرافیت یو داسـی سازمان اوتشکل ته اړه درلوده چـی دده ثروت اوشته منی وساتی او دمریونو اوترلاس لاندې خلکو مقاومتونه مـات کړی او څوك سر جگو لوتـه پرینه ږدی او یوی سیاسی روبناتـه یـی ضرورت درلود چـی دنوې پیداشـوی طبقاتی ټولنی رشـد او وده آسانه کړی . دهمدی منظـور پـه اساس یوډول اتحادیی منځ ته راغلی چـی دغو اتحادیو ته پټی یا «مخفیاتحـادیـی» وایـی .

په دی وخت کی چـی ثروتقطعیاهمیت پیدا کړی ؤ . په دې اتحادیو کی میلمستیا گانی او مادی همکاریوپـوره رول درلـود او یوازې هغـو کسانو په کی دشمول حق درلوداوغړیکیدای شول چـې بډای اود ثروت خاوندان به وو اوښی میلمستیاگانیبـه یی ورکولای شـوې اود مـادی مـرستو جوگه به وو . ښځی ، واړهاوهغه آزاد خلك هم ددی اتحـادیو لـه غړیتوب څخه محروم وو چـیبیوزلی به وو.

داتحادیو دغړوپه شته منی به هیڅکله اوهیڅوك بلو سیدلاینه شواومتعر ضین بـه دغړیو له خوا په کلکه تنبیهه کیدل اوپه گډه سره به یی مخالـف قوتو نه ماتول اود هغوی شته منیاوځان تـل د دوی له خواد تعـرض اوتالا لاندې و. په دی توگه په ټولنه کـی دارباب قدرت اونفوذ ورځ په ورځ زیاتیده اوپه مقابل کی دښځومقـام تنزل کاوه .

له بلی خوا بیوزلـی ورځپه ورځدمړو او بډایو پوروړی کیـدل اوکه چیری پـه پورور کولو کی به یـیځنډ او یا انکار وکړ ، نوشته منیبه یـی ضبط او متمرد ته بـه داسـیکلکه سزا ورکړل شوه چـی دنورو لـه پاره به هم دعبرت درسشو. دې اتحادیو بـه کله ناکله د کلیوالـی اویا سیمه ایـزی محکمیحیثیت هـم درلود او داسی قیود او ضوابط یی ایجاد کړل چـی داتحادیوټول منافع په کی خوندی وو اودهر راز طغیان او بغاوت مخه یی نیوله پـه بل عبارت ویلای شو چـی پـه دی دوره کی لومړنی اجتماعی قوانینمنـځ تـه راغلل چـی دقانون پـه تاریخ کـی ستر اهمیت لـری .

څـو مـره چـی دبډایانو امتیاز اوقدرت استحکام پیدا کاوه پههماغه اندازه پخوانی طایفه ای دیموکراسیلـه منځه تله اوپر ځایی ییپـوه نوې سیاسی مخبینا (روبنا) ، یعنینظامی دیموکراسی قایمیدله . ددی دیموکراسی اداره هم دیورئیس اودیوی شورا پـه لاس کیوه ، مگر ددې دوه نظامونو ماهیت او خصوصیت یو تر بله سره ډیر توپیر

درلــود .

په دې نظام کی رئیس دډیریشتــه منــی خــاوند او د زور وری کورنی څخه انتخابیږی چی شخصیت‌یی پــه ثروت ، دتبر پــه کثرت‌او دمریونو او اتباعو پــه ډیروالی‌اتکالــری او وروسته مراتب هــم پــه همدې توګه تاکل کیږی .

دی‌دول دیموکراسی ته ځکه نظامی‌دیموکــراسی ویل‌کیږی چی پــه دی ټولنه کــی پخپله جنګ اود جنګ‌لــه پاره تیاری هــم ځپل پخوانــی مفهوم له لاســه ورکوی او بله بڼه‌غوره کوی ځکه چــی پخوا به جنګ اکثراً دتجاوز د دفع اود ښکــار اوحاصل دسیمو څخه دتجاوز او تیری دلیری کــولو پــه خــاطرو ، مګــروروسته چــی ثروت تکامل وکړ ، جنګونه او جنګی تدارکات یوازی دثروت دغونډولو پــه خاطرو واو د نورو شته‌منی بــه یی لوټولی . دهمدی اغیزی لــه کبله دقبا یلو تــرمنځ همږاخ اوډب پیښیږی او دثــروت دغونډو لوله کبله جنګونه پیــل کیږی او مسلح قوتونه منــځ‌تــه راځــی چــی دخپل مشر قدرت پــه فوق‌العاده توګه تقویه کوی .یاپــه بله وینا خصوصی ټولنی‌منځ تــه راځــی چی دطایفی نه مستقلی‌دی اود خپلو ګټو او زیانونو پــه خاطــر جنګیږی . رئیس یامشر هــم‌هغه کسان راټولوی چی دده اوامرو تــه دزړه له کومی غاړه ږدی او دلوټ او چپاول حرص په کی زیات‌وی او خپلوان او عزیزان خپل اهمیــت‌اوباور لــه لاسه ورکوی .

په دې ټولنه کی نجبا اوبیوزلی‌محکومین دواړه ګــډون لــری چــی مریونه اوتر لاس لاندی خلك ددوی‌دګټود تامین له پاره استخدام شوی دی او رئیس پــه پای کــی دجګړه‌مارو مشروی او مطلقه قــدرت تــه رسیږی چــی دهمدی قدرت پراختیااوتوسعه د دولت دتشکل عامل‌ګرځی.

دولت چی پــه واقیعت کــی یــوداســی ماشین دی چی دیــوی طبقی تسلط پربلی باندې تامینوی اوهغه وخــت منځ ته راځی چــی په یــوه ټولنــه کــی طبقاتی توپیرونه بیخی‌مشخص او جلا شوی وی .

## دآریایانو کلتوری اړخ

لکه چــی دمخه وویل شول چــی‌پــه آریایانو کــی لومړی انشعاب‌د (۳۰۰۰ق‌م) پــه شاوو خواکی راغــی‌چــی یوه ډله یی داروپا خــواتــه لاړله او متباقی دمنځنی آسیا پــه‌غرونو او ورشو ګانوکــی پاتی‌شول.

د دوی ســره په‌جنګ کــی ځای‌پرځای سامی او غیر آریایی قومو نــه او قبیلی هــم اوسیدلی چــی دهغوی سره‌یی کلتوری تبادلی پــه

یوخــه کمه اندازه درلودې ، مګــرداتبادلی دومره نه وی ، لکه څومر یی چی دخپلی بقا پــــه نیت دهغوی سره اختلافات راغلی دی .
کــه څــه هم مورږ دلتــه دانشعاب کلمه راوړه او دا زما پــــه نظــر سمه نه ښکاری ، ځکه چی د دوی ترمنځ دکوم اختلاف په اثر بیلتون اویا شړل راغلی نه دی ، بلکی دپــر اختیا او وسعت له کبله خپاره شوی او هری خواته تللی دی .

پاتی آریایی قبایل هــم لاپســی خپاره شول . د دوی دغرب پــه لور نور مدنیتونــه موجود وو چــی ددوی مخه یی نیوله ، مګر دجنوب لورته یــی مخه او ورشوګانی پراخه وی. دهندوکش غــر د دوی یو مقدس ځــای او لومړی ګرانه سیمه ده چی دسوونو کلونو په موده کــی یی د دی غره دلمنو او شمالی او جنوبی درو څخه استفاده کړی ده .
لکه چی دمخــه وویل شول چــــی آریایانو دآمو سیند پــه غاړه کــی د (۳۰۰۰ قم) پــه شاوخــواکــی دکلیتمینار پــه نامــه یو تمدن درلود او دلته را رسیدلی وو نود دې نیتیی نــه وروسته دآمو سیند جنوبی او غــربی دروکــی پسی خپاره شول .دوی اکثره بلکی لــه یوی مخی په دغــه وخت کــی پوونده وو . .
دلرغونی باختر پــه ورشوګانو، دخوړونو پــه غاړو او پراخو د ښتوکــی به یی خپل مالونه پیول اوپــه دوبی کــی به دهندوکش لمنو ته ختل چــی ددې دود مظا هـــــراوس هــم پــه کوچــی قبایلو کی مــوجود دی .

دا کلمه باید هیره نه شی چــی آریایی قبایل چی هر چیرته رسیدلی دی لومړی مالداران او پوونده وواو بیا ورسته کروند ګر شوی دی ښایی دا کلیــــه پــــه اکثرو نوروقومونو کــی هــم صدق وکړې.
دغه آریایان دآموسیند په شمالی اوجنوبی غاړو اود هندوکش پــه جنوبی او شمالی تړولو لمنو او دروکــی خپاره شول او دخوړونو پــــه غاړویی په لومړنی کرونده اوزراعت پیــل وکــړ او ورځ پــه ورځ یــی زراعتی چارو ته پراختیا ورکوله .

لــه بلی خوا باید په یاد مووی چــی لــه دوی نه مخکی د دوی نور ورونه قبایل چــی په تاریخ کــــی پــه دراوید یانو Dravidis مشهور دی دهندوکش په لمنو کی خپاره شــوی وو اود کروندې لومړنی چاری یی پیل کړی وی . نوی راغلی آریایی قبایل د دوی ســره آشنا شــول او پــه ځینو وختونوکی یــی سره یوتربلــه مخالفتونه هــم راغلی دی چی ښایــی ځینو دځینو نورو پــه ورشوګانــو او سیمو تعرض کړی وی او

یـوه قبیله دبلی قبیلی دفشار پـه‌اثـر پـه مهاجرت مجبوره شوی‌وی.
دآریایانو خپریدلو دسوونو کالونـوپه موده‌کی لاپسی وسعت وموند او د اوسنـی افغانستان جنوبی اوختیځو سیموتـه ورسیدل او نـوی ورشوګانی او څړځایو نـه‌یی کشف‌او تسخیـر کړل . دوی دایون او مهاجرت په منظم اوپرله پسی‌توګه نـه وکړی بلکی دسوونو کلونوپه موده‌کی چـی دژمنیو او پسر لنیـوورشو ګانو ترمنځ بـه‌یی تګ‌اوراتګ کاوه او تدریجاً به‌یی ځایونـه اوورشوګانی هـم پیدا کولـی او یـا بدلولی چـی ددې ورشو ګانو پـــه‌شاواو خواکـی به‌یی خپلو زراعتـی حدودوته هـم پراختیا ورکوله اوکله به داسی مرحلی تـــه ورسیدل چـی زراعتی اړخ به‌یی په‌پونده‌توب‌غښتلی او پیاوړی شو ، نود دیشینی ژوند به‌یی غوره کړ اود کوچی‌توب‌نه به‌یی لاس واخیسـت . البتـه ددیشینی سیمه به یی‌نوی ځـای اونـوی سیمه وه چی په همدی توګه یـی خپل حدود پراخول اونوی سیمی‌یـی کشفولی اوخپل قلمروته یـی پراختیاورکوله . دتاریخی‌ـ اجتماعی‌خاصـو تحولاتو پـه ترڅ کی یـی منظم قوتونه تشکیلول او دګاوندیوقبایلو سره‌یـی په‌متقابله اختلافاتو پیـل کـړی دی چی بحث بـه یـی‌وروسته راشی .

آریایی قبایل دتاریخ په‌یوه‌خاصه‌اقتصادی او اجتماعی دوره‌کـــی د اوسنی افغانستان پـه مختلفو سیموکـی خپاره شول . دا مراحل په‌تیرو پاڼـوکـی ذکر شول اوس غواړوچی‌پـه کلتوری او مذهبی لحاظ ددوی پـه احوال یـو څـه رڼا واچوو .

آریایان دنورو قومونو غـوندې‌پـه لومړی وخت کی ناتور الیستان وو اود طبیعت لمانځه یی کولـــه.پـه دوی کـی په‌هغه وخـت کـی چـی لادتمدن پـه ابتدایی مرحـلـه کـی وو منظم تولیدې اجتماعی او اقتصادی تشکیلات راغلی نه‌وو اوداسی شرایط منځ ته راغلی نه وو چـی دوی سیاسی منظم سازمانونه پیل کـړی . پخی کلا ګانی ، منظم عسکر او اجتماعی تشکیلات یی‌نـه درلودل . نودوی پـه طبیعـی قواو عقیده لرله او طبعی‌مظاهریی لمانځل.

ددې طبیعی قواو خیال او سـوچ‌دوی تـه دخپل ماحول او چاپیریال نـــه پیداشـوی و او اکثـر ارباب‌الانواع او دیو تاګان یی دخپلی‌خوا او شا طبیعی مظاهر وو .

ځینی قبایلو خاص او جلا ارباب‌الانواع هـم درلودل چی په نوروکی یـی رواج نه‌درلود مګر ځینی داسی‌ارباب الانواع وو چـی ټولو قبایلو یی نماځنه کولـه مګر یوی قبیلی‌بـه خاص خپـل نژدی مرستیال او

پر خپلی قبیلی گران بالـه .
موږ دلته د دوی دهغـه وخت‌مذهـب څیړو چـی هندی ، افغانـی اوماد او فارس قبایل سره یوځـای‌وو او مشترك دو دونه اوګډ ارباب الانواع یی نمنځل . دا وخت تقریباًد (۳۰۰۰) تـر (۱٦۰۰ق‌م) پـوری دوره ده چـی دوی دځینو سیندونو،لمـر ، سپوږمی اورعد اوبـرق ، باران او داسی نورو طبیعی مظاهرولمانځنه کوله . ددې خبری دلیل‌دادی چـی د دوی ارباب الانواع او دوداو دستور سره مشترك وچـــی د هندی ، افغانی ، ماوراء النهـــر اوایران دقبایلو په پاتی شونو مذهبی آثارو کـی د دغو ارباب الانواعویوراز نومونه راغلی او تکرار شـوی دی . دلتـه پـه لنـډ ډول پـــه مختلفو آثـاروکـی د دوی دعقیدوی پړاوونو پـه مسیر یو څه رڼاچوو
کلـه چـی د دوی پـه تـولیدی‌قوتونوکـی یو څـه نظم او نسق پیدا شو ددوی مذهبی حلقی او عقیدوی روابط هـم یو څه سمبال شول او لومړی نظم چـی د دوی ترمنځ‌پیدا شو دلمر نمانځی اویا مهرـمیترا ـمیر پرستی یا (Mitraism) بنه وه.
لمر نمانځنه ځکه مونږ یوه‌مذهبی‌دوره وټاکله چـی کـه څـه هـم دوی دنورو طبیعی قواو او مظاهرو سمبولونه نمانځل ، مګر میترا د دوی تر ټولو لوړ ، لـوی او ډیـردستاینی وړ رب النوع وچـی پـه ټولو آریایی قبایلو کـی یی درناوی‌کیده او دزمانی پـه تیریدوسره‌یی غیرآریایی قبایلو تـه هـم سرایت‌وکر او داروپا پـه مختلفو سیمـــو کـی یی معتقدان او پیـروان پیـداشـول تردې پـوری چـی دمسیحی دیـن یوسر سخت رقیـب او سیال‌ګڼل کیده دارب‌النوع تردی اندازی پـوری پـه آریایی قبایلو کـی دنمانځنی وړو چـی حتی دزردشتـی دیـن پـه وروستیو وختونـو کـی‌یـی بیرته ظهور وکـړ اودا هورا مزدا سره څنګ پـه څنګ یاورنـه لـږکم دنمانځنی او درناوی وړ و . دمیترانوم پـه ویدونو اود ګاتونـوڅخـه پرته پـه نوره اوستا کـی ډیـر ځله راغلی دی اوحتـی پـه‌اوستا کـی یوازې یو ځانګړی‌یشت ورته تخصیص شوی دی .
همدا ډول په هغـه میخی کتیبـــه‌کی چـــی دترکیـی دا ناطولـــی‌د بغازکویی پـه سیمه‌کـی پـه‌میخی‌لیك موندل شـوی ده اود میلادنـه مخکی پـه (۱٤) پیړی پوری اړه‌لری‌دویدی عصر دنورو خدایا نـو پـه څنګ کـی دمیترارب النـوع نـوم‌او ذکـر هـم راغلـی دی . همـدا راز دا سوربانی پال (دبین‌النهـرین‌یو پاچا )دکتابخانی په یوه لوحـه

کې دمیترا نوم د «شمس» ربالنوع‌له نامه سره همغاړی یاد شوی دی.
په ګاتونو کې دمیترا ربالنوع‌یاد شوی نه‌دی او دا ځکه چې زردشت دخپل دینی ریفورم په لړکی‌نه غوښتل چې دا هورا مزدانه پرته بل ربالنوع ته دومره لوړمقام ورکړی ، مګر په خلکو کې د دی دیو تامینه او نفوذ په دی‌اندازه و چی د زردشت نه وروسته په نوره اوستاکی یی بیرته نفوذاو د خول وکړ او ډیره یادونه یی راغلی ده . (۱)
په اوستاکی که څه هم میترا ته‌د خدایی مقام پاتی نه‌شو مګر د ځلارنیا او دربنتیا اوقول او پیمان دپربنتی په مفهوم یی ظهور وکړ.
په ویدی سرو دونو کی هم درنیا، ځلا اوسمون دربالنوع په‌مفهوم یاد شوی دی .
په اوستا کی دغه ایزت(ربالنوع) دډیرو اوصافو اوقدرت د ډیرو و مظاهرو خاوند بلل‌شوی‌لکه : دپراخود بنتو ، چابکواسونو، دزروسترګو ، زروغوړو اوزرګونوچالاکیو او . . . . خاوند اوداسی نوریاد شوی دی . ددی ربالنوع‌یاایزت په باره‌کی په سلګونو بندونه اوستاین لیکونه راغلی دی‌او آریایی قبایلو به دجنګ اوجګړی په وخت‌کی اویا د دروغو دافشاکولو په برخه کی له هغه څخه ډیره هیله درلوده او دده سره‌یی‌نوراته (۸) کسه مرستیالان ګڼل‌چی د «هرا» دغره په څوکو ناست‌دی‌اود آریایی قبایلو سیمی څاری . د څارویو ثروت او قدرت بخښلو خاص‌قدرتونه دده په لاسوکی وو .
دلمر (میترا) نمانځنی طریقه اومذهب نورو غیر آریایی قبایلو او ښارونو ته هم نقل شوه او دبیـــن‌النهرین ، سوریی او ترکیی له لاری آن تر رومه پوري دا مذهب ورسید. په (٦٦) میلادی کال کی میترایزم دروم یورسمی‌دین وګرځید او«نرون»دروم امپراتور دارمنستان دپادشاه په واسطه همدي مذهب ته‌غاړه‌کیښوده اود دیو کلسین او اوګالر یوس امپراتورانو په وخت کی میترا دټولو ارباب الانواعو څخه لوړمقام ونیو او دټولو مشرو ګڼل شو. اوددي ربالنوع له پاره یی خاص او ځانګړی معابد او مزدکونه جوړ کړل‌چی مزدکونو ته به‌یی (Methreum) ویل . (۲)
دا مذهب دافریقا شمال بالکاناتو(دیونان نه پرته) د دانیوب سیند

---

(۱) ادبیات مزدیسنا
(۲)ادبیات مزدیسناد ښاغلی پورداودمهر یشت مقدمه

غاړه ، دهنگرې درن سيند ، ايټاليااو داسې نورو ځايونوته ورسيداو لمن يې حتى انګلستان ته هم پراخه شوه .

دميترا په برخه کې راز رازافسانې او اساطير جوړشول او دا افسانه ډيره مشهوره شوه چې ميترالومړى دانسان په بڼه په يوغار کې شپنوته راڅرګند شو اوشپنووپيژاند .

دهمدې افسانې په بنابه يې ميتريومونه په غارونو ، ياد ځمکې لاندې ځايونو کې جوړول .

داافسانه دوام مومي او وايي : کله چې ميترا دانسان په څيره څرګند شو ، نويو غوبي يې حلال کړ دغوښې او وينې څخه يې خپلو پيروا نوته ډوډې او مقدس شراب جوړکړل اوپه خپلو پيروانويې وخوړل اووينه يې په ځمکه تويه کړه چې ځمکه يې څربه او دحاصل لپاره چمتو کړه . بيا وروسته بيرته په بله څيرې واوښت او آسمان ته وخوت . دميترا په سرګردچاپيره دنور اورنا يوه شعله ده چې دلمر (شمس) نه يې اخيستى ده ځکه چې ميترا دلمر سره جګړه وکړه اولمر مغلوب شو . کله چې لمرده قوت وليد نوخپله رڼايي ده دسر څخه تاوکړه . ميترا داخرت نياومن دى او په هغه نړۍ کې د خلکو شفيع دى .

ددې مذهب پيروانو عقيده درلوده چې دخير او شر ترمنځ دايمي جګړه روانه ده او انسان په نيکو چارومکلف دى اوخير په پاى کې په شر باندې غلبه مومي .

دميترا نفوذ په اروپا کې د(٣٩٢) ميلادي پورې ورځ په ورځ زياتيده او ښه رونق يې درلود ،مګرددې نيتې نه وروسته د مسيحيت په استحکام سره مخ په زوال روان شو . (١)

همد راز ميترا په آريانا کې دزردشتي مذهب ترراتګه پورې په ټول شدت او قوت نمانځل کيده ،مګر دزردشتي مذهب په ريفور مستې بڼه کې يې مقام راټيټ شواو اهورا مزدا دلوى خداى په صفت وپيژندل شو اوميترا اونور ايزتان يې مرستيالان او عمالو ته راټيټ شول اوځينې آريايي ارباب الانواع يې له برمه وغور ځول اوپر ځاى يې نور معنوى مفاهيم ودرول .

---

(١) دښاغلي احسان طبري (بررسيهاى درباره برخي جهان بيني ها و جنبش هاى اجتماعي در ايران)

میترا دشفیع ، منتقم او عادل‌خدای‌پـه صفت پیژندل کیده چـی د ظالمانو څخه انتقام اخلی او نیـک‌کـارانو ته پـه دنیا اوآخرت کـی دخپلو ښو کارونـو اجر او ثـواب‌ورکوی .

## دمیترا یزم تصوفـی اړخ :

پـه دې مذهب کـی دا عقیده پـه‌کلکه سره موجوده وه چی دژوندانه پـه ټولو چارو کی باید عدالت اوبرابری وساتله شی . یو به بل‌دور ور او خور په نامه یـا دول او دعبادت او قربانی پـه مراسمو کـی به یی یو ډول مساوات مراعات کاوه‌چی خاص دهمدې مذهب خاصه وه.(۱)

په دې دین کـی دتعمید مراسموهـم ځای نیولی و او هیڅ لیری نه ده چی دمسیحیت دا رسـم دهمدی‌مذهب دا غیزو پاتی شونی دو دوی. په‌دې مذهب کـی دقربانی مراسدواهمیت درلود اود میتـرا دخوشحالو لـوله پاره یی خپل ځاروی حلالول.دتعمید مراسـم پـه دې ډول اجـرا کیدل چی ځاروی به یی په یوه‌لوړځای کـی دقربانی له پاره څملا وه او لاندی به‌یی ورڅخه یو جالی‌دارلوښـی یاکوم رخت ونیو او دلوښی لاندې به یی هغه شوك کښیناوه‌چی‌دتعمید مراسم ورباندی اجراشـی. دحلال شوی مال وینی به‌په شخص‌راتوی شوی او دهغه ټول وجود به پری ککړ شو. داوینه به د ده پروجود وچـه شوه او دیو یادری‌شوا روزنه وروسته به‌یی ځان مینځه.دا مراسم به‌هـم دیومشر یاروحانی شخص (ښځی یانر)په واسطه اجراکیدل . داشخص به ددی دود پـه اجرا کولو سره دنورو پلیدیو څخه پاك شـو او رسما به‌د دی دین غړی شـو .

دوی په تعبدی مسیرکـی یولـړمقامات درلودل چـی ډیر متقی به‌یی آخرین پړاوته رسیده . ددی مقاماتوشمیر اتوته رسیده چـی پـه دی تـرتیب سـره دی .

۱ـ کارغه ۲ـ پرهیزگار ۳ـ جگړن ٤ـ زمـرك ٥ـ آریایـی ٦ـ ابـلاغ ۷ـ لمر ۸ـ پلار یا (پیر) .

همدا ډول ربانی عشایا دخدای‌دجسم سره‌دیو ځای کیدلومراسم او دو دهم موجود وچـی دیوې کتری‌ډوډی او شرابو پـه خوړلو سره‌به دوی دمیترا سره یو ځای کیدل اومیترا به په دوی کی حلول کاوه .

دتعمیـد دود تـراوسـه پـوری‌هـم په ځینو پښتنـو او آریا یـی

(۱) بررسیهای در باره برخی ....

قبایلو کې وجود لري او عموماًخپل ماشومان دیو ځاروی په وینو ککړوی او غوښه یې خیراتوی .ماشوم دوینې تروچوالې پورې ډیر تودساتی اوپه نغری کې پراخه اوربلوی او غوښه په همدی اور باندی پخوي اوپخه یې خلکو اوخپلوانوته ویشی او کلکه عقیده ورته لري . د دې دود اثر اوبقایا تراوسه پورې موجود دی اوتر څو پخوانیو کلونو پورې یې غوره رواج درلود، مګر اوس دمکتبونو او تعلیمی مراکزو دا غیزو په اثر ورو وروله منځه ځی اولمنیې ورتو لیږی.

## دمیترا نمانځنې د مذهب عوامل:

آریایانو دخپل جغرافیایی ماحول‌دکتننی نه په دی معتقدشول چی لمر د دوه لویو نعمتونو بخښونکی‌دی چی یویی رڼا او بل یی تودوخه ده . دا وستا دمتونو څخه داسې‌ښکاری چې هغه وخت دغه سیمی ډیرې سړی وی اوداسی فقری اوبندونه شته چی ساړه اود شمال باد په کې ډیر غندل شوی دی‌اوساړه‌یی دنورو ناوړو پیښو او مخلوقاتو په څیر داهمریمن یا انګرو منه پیدابښت بللی دی . نولمریی یو نعمت بللی دی . له بلی خوا دژمی‌څو میاشتی د دوې در کود موسم‌دسړ وله لاسه دی او کله چی دلمرتاوبه په پسرلی کی ډیر شو نودشتی ، دغرو لمنی او ورشوګانی‌به شنی شوی اود کروند وفصلونو به په وده پیل وکړ . نولمر دژوندانه دهر اړخیز فیض او برکت منبع اوسر چینه وه چی په دې‌سویه دوی هغه وخت په ټولو طبیعی مظاهروکی په دی اندازه‌ګټور جسم درك نه‌کړای شو ، نودا یی د ټولو طبیعی قوتونو څخه پورته وباله او سحرا میز طلوع او غروب یی دوی بیخی مجذوب کړل.

دوی دلمر لویدلو او بیاراختلوته حیران شول او داسی فکریی وکړ چی یوه بله ماوراً الطبیعی‌قوه‌شته چی دغه رڼه او توده ګرده پنډوسکه هره ورځ بیایی اوبیرته یی راولی نوهغه یی دلمر خدای یامیترا وباله اود ټولو ارباب‌الانواعو دپاسه مقام یی ورکړ.

دنن ورځی پوهنه دا تائید وی‌چی لمر دځمکی پرمخ دټولو انرجیو مور او زیږنده ده او د دې نړی‌په ټولو پیښو کی پوره اغیزه‌او اثر لری . نوکه څه‌هم دوی‌هغه‌وخت دلمر په دغو اسرارو پوه نه وو ، مګر دلمر خارق العاده‌اثرات یی طبیعی معجزات وبلل اود دی نظام داداری له پاره‌یی یومدبر او چلوونکی وټاکه چی همدغه پراخ مذهب تری پیدا شو .

دوی دخپل ژوندانه ډیری چاری په همدې دیو تا پوری مربوطی وګڼلی او هغه یی دخپل ژوند په پیښو کی اغیز من او مؤثر وبالـه اودعبادت لـه پاره یی خاص مقررات او قوانین وضع او تفسیریی کړل اود خپل وخت له پاره یی یو واقعیت وګاتـه .

دمیترا له پاره پـه آریایا نوکی خاصی ورځی وټاکل شوی چی په دغـو ورځو کـی به یی جشنـو نـه کول اود منی د «مهرګان» اودپسرلی (یختیر) (۱) جشنونه خاص شهرت لـری . په دی دین کـی د ورځی دری وخـته عبادت کیده چـی یوسهـار دلمر دراختو پـه وخت کـی دویم د غرمی او دریم دلمر لویدو پـه وخت کـی و . اوپه هر وخت کـی به یی دخپل ژوندانه خاصی غوښتنی او هیلی ورته وړاندی کولی .

دلمر درناوی تر اوسه پوری پـه اکثرو پښتنی قبایلو او ځای په غیر وپښتنی قبایلو کی موجود دی اودکسوف پـه وخت کـی دوی اوس هـم دا عقیده لـری چـی زموږ دبدواعمالو پـه واسطه لمر خپل مخ پټ کـړی دی او ممکن چـی په کومـه سیمه کـی اوس کوم ډیر بدعمـل جریان ولری او په یابه په چالوی ظلم او تیری شـوی وی .
عامیانه پښتانه اوس هـم دسختـی سیلی لګیدل د کوم چا دناحقه وژلو معلول بولـی او فکر کوی چی دهغه مـړی اروا پـه دی بادکـی روانه ده او غواړی چـی خلك پخپل جسداو دغه ظلم باندی خبر کـړی .
همداسی دخسوف پیښه هـم یوه بده انګیر نه ده .

پـه اوستا کـی چـی بیـادغـه رب النوع دایزت مقام ته راټیت شو بیایی هـم دشفاعـت صفت له لاسه نـه دی ورکړی او عقیده یی درلوده چـی میترا بـه دسروش اورشن سره یوځـای دربښتیاو یونکوار واګانی د چینوت (صراط) پـل نه پوري باسی او د دوزخ ددیوانو څخه بـه یـی ژغـوری .

سـاکـی اوپښتنی قبایلو ترډیره وخته پوري دغه مذهب وساتـه او د هخا منشیانو تروخته پوری یی هـم زردشتی دین منلی نه و ، ځکه کله چـی دساکو سره دهخا منشی کـوروش جګړه پیښیږی ، نوهغـه وخـت هـم دساکو مشره چـی یوه ښځه وه او تامیره Tamiris (۲) نومیده او زوی یی دفارسیانو دیوی خدعـی اوټګی پـه اثـر کوروش

---

(۱) امکان لری دپښتو د (اختر) کلمه د (یختیر) اوښتی فورم وی .
(۲) ــ تامیره په یونانی لیکنو کـی Tamiris راغلی چـی (is) یی یونانی لاحقه ده .

نیولـی واوبیایی وواژه ، نودغـه مشره هغه وخـت دساکو په (میترا) بـاندی داسـی سوګند یادوی چـی کـه زما زوی را خوشـی کړی نو ، سولـه به درسره وکړم اوکه نـه نو زه دساکو پـه خدای «دلمرخدای ـمیترا» باندی قسم خورم چې زه به ستاتنده په وینوماته کړم (۱)

کله چـی دخپل زوی دوژلو څخه خبره شوه ، نوکه څه هـم پارسیانو دغـه جنګ ته د کوروش په مشری دیـر پاخه ترتیبات نیولی وو مګـر د ساکو دجرئت او میړانی پـه اثریـی د پارسیانو لښکریاو واژه یـا بندیان کـړل اویا وتښتیدل اوسترکوروش دساکو له لاسه ووژل شو. دسـاکو ملکی د کوروش مړی پیداکـړ اوسریی دوینو پـه یوژی کی واچاوه او پـه دې توګـه یـی خپل سوګند پـر ځـای کـړ .

## ویدی کلتور او عصـر

څرنګه چی هوړ پـه تیرو پاڼوکـی ور تـــه اشاره وکړه چی آریایان داوسنی افغانستان پـه درو اوورشوګانـو او د څوړو نو په غاړوکـی د (۳۰۰۰) ،(۳۵۰۰ق م) په حدودکـی میشته شول یو څه برخه یـی دآمو سیند په پورې غاړه ورشوګانو درواو د غرونو په لمنو کی استوګـن شـول او ورځ په ورځ یی دځارویواو نفوسو شمیر زیاتیده او دسوونو کلونو په موده کی یی نوی ورشـوګانی ، پنډ غالی او مینی جوړولـی او دیشین کیدل .
د ماوراالنهر آریایان دخپلو لیـږدونو په لړکی آن دچین تر تورفانه پـورې ورسیدل او په غرب کی یـی دبین النهرین دمدنیت پولو تـه لمن اوږده شوه .

دافغانستان په سیمه کی لومړی دشمالی صفحاتو په درو ،ورشوګانو ، کښیو اوغرو په لمنو کـی میشته شـول او دلرغونی باختر (بدخشان، کندوز ، بغلان ، سمنګان ، بلخ او شبرغان) په سیمه کی یی دژوندانه دمختلفو اړخونو پـه پرمـخ بیولـوپیل وکړ او مختلف قبایـــل دهغـــه وخت دشرایطو دتقاضا سره سم دقبیلوی اتحاد په بڼه په جلا سیمو کـی میشته او استوګن شول . دوی دخپل لومړی راتګ په وخت کی اکثره پوونده او مالداران وو ، په کـرارکرار دیشین شول او دکروند ګری چاروتـه یی پراختیا ورکړه .

---

(۱) دافغانستان ژبی اوتو کمونه د(ساکی ژبی ) بحث

دوی په لومړی وخت کی پوونده‌وو او کروندګری یی یو فرعی کسب و . دا خبره سپینول ډیرسخت‌دی چی معلومه شی دوی کله او څه وخت په کرونده پیل وکړ اوددیشینی ژوندیی غوره کړ ، مګر دا خبره یقینی ده چی په تولیدی قواوباندی دمازادو نفوسو دفشار په اثر دوی کروندې ته دیوی غذایی منبع‌په توګه توجه وکړه او داتوجه په یوه ډیر طولانی وخت کی وه. دباختر (کندوز او بغلان په کځیو او دبلخ سین په غاړ و اولمنوکی)دوی خپل لومړنی زراعت پیل کړ اوبیا وروسته دنورو شا اوخوا سیموآریایانو هم دغه شغل تعقیب کړ .

داخبره پوره معلومه نه‌ده چی‌کرونده د دوی خپل ایجاد دی اوکه دوی دغه فن له ګاونديو قبایلواوقومونو څخه زده کړی دی ، ځکه چی په قطعی توګه د دوی ترمنځ‌دغه بیلتون یو مشکل کار دی .

ویدی عصر هغه دوره ده چی‌په دې وخت کی دټولو ختیځو آریانانو دو دونه ، معتقدات ، دژوندانه طرز او تولیدی منابع اود تمدن او کلتور ټول اړخونه سره‌یو شان وو .

د دوی په ژوند کی سادګی‌موجوده وه او کالی یی وړین او څرمین وو . دوی دغه وخت دوړیو اوبدل ، دڅرمنو رنګول اوساده دباغت زده و ، دوی دفلزاتو څخه‌په ابتدایی ډول استفاده کولای‌شوه او د اوسپنی الات اود ښکار اودفاع‌وسلی یی لرلی چی مهمه وسله یی غشی او لیندې وی . اسونه ، پسونه وزی ، خره ، سپی اوغوایان یی ساتل . (۱)

ټولو یوشان عمومی جشنونه اواخترونه لرل اوپه ځینو قبیلو کی بیا خاص جشنونه هم موجود ووچی‌دنورو قبایلو سره به یی توپیر درلود . په جشنونو او میلوکی‌به یی اتنونه نڅاوی او نور مذهبی حرکات کول چی نرو اوښځو اوخصوصاً ځوانانو به په‌کی حتماً ګډون کاوه .

دقربانی مراسمو اوپه ټولنه اودین کی دنویو بالغانو دشمول له پاره خاص مراسم موجود وو . داسونو ځغلول او پهلوانی په کی په پراخه اندازه رایج وه ، بلکی‌دافنون د دوی دډیر ویاړ او په ټولنه کی دلوړ والی او عزت‌وسیله وه .

دغه وخت په دوی کی دښځوپه ژوندانه قیود او ضوابط وضع شوی نه‌وو ، بلکی ښځو دنارینه وسره‌سم او برابر حقوق درلودل ، حتی

---

(۱) نګاهی به تاریخ جهان ـ دښاغلی جواهر لعل نهرو لیکنه

په ډیرو قبایلو کې ښځو دنارینه و څخه فوقیت درلود او حتی په ډیرو آریایي قبایلو کې دمور مشرۍحالات موجود وو . تر دغه وخته پورې د دوی اقتصادي وضعیت‌دې‌درجې ته رسیدلی نه و چې دپلار مشرۍ شرایط چمتو کړی اود ښځومقام په ټولنه کې راټیټ‌شی .

دسلګونو کلونو په دوره کې‌د دوی په اجتماعی او اقتصادي حالاتو کې بدلون راغی ، ځینوقبایلو کرونديې ته مخه وکړه کورونه ، کلی او دا ستوګنی دایمی‌مرکزونه یې جوړ کړل او دیشینی ټولنی منځ ته راغلی .

پوونده قبایل دژمی دورشوګانودلټون په هڅه‌کی دافغانستان جنوبی او شرقی درو او کښیوته راورسیدل او دزمانی په تیریدوسره کروند ګر شول . پوونده قبایلوبه کال په کال خپلو ورشو ګانو ته پراختیا ورکوله اویو کال به‌دبل کال نه زیات لیری تلل اوپسرلی او اوړی به خپلو غرنیو بانډواو مینو ته دخپلو مالونو سره ختل.

دا جریان د ډیرو پیړیو په موده‌کی روان و او ورځ په‌ورځ د دوی په ژوند اود ځمکی او ورشوګانوپه پراختیا کی پر مختګ راته . دوی د دی سفرونو په لړکی دنوروډیرو غیر آریایی قبایلو سره مخامخ کیدل اوپه کلتوری او مذهبی ارخ‌کی یی یو تربله متقابل اثرات پریښودل او اخیستل .

## دویدی عصر مذهبی خوا :

دزردشتی دین ترراتګه یورې‌دوره د موږد «ویدی» عصر په نامه بولو ځکه چی آریایانو په دغه وخت کی یولړ فکری او ذهنی محصولات تولید کړی دی اوترموږپورې را رسیدلی دی چی اثرات یی تراوسه پورې په مختلفوقبایلو کی شته . دغه فکری محصولات د دوی د ژوندانه دمادي‌اومعنوی اړخونو غوره څرګندوی‌دی.

دوی یولړ عقاید اود ژوندانه قوانین منځ ته‌راوړل چی د دوی د ژوندانه د مختلفو اړخونو او خپل‌ماحول څخه راپیدا شوی دی . د دوی پوهانو دغو کلماتو ته مذهبی‌رنګ ورکړ او دارباب الانواعو په ستاینه کی یی‌یو راز منظومی‌ترانی جوړی کړې چی دتقدس مقام یی ونیو او وروسته به په‌ارثی توګه سینه په سینه په‌یاد وساتل کیدلی او په خپلو مراسمواوحتی دژوند په اکثرو اړخونو کی ورڅخه استفاده کوله اولوستل‌به‌یی. دغه وخت هندی ، ایرانی او افغانی آریایانو ټولو ګډ عنعنات ، مشترك عقاید او شریك دودونه

درلودل او دژوندانه په شئو ناتوکی یی دگه طرز تفکر پیروی کوله.
ددی وخت دوره موږ دمیلادو نه (۲۰۰۰) کاله پخوا ټاکلی شو، ځکه چې د(۲۰۰۰ق‌م) نه وروسته دغه قبایل دمختلفو اجتماعی او اقتصادي سببو نو له کبله سره لیری‌شوی او مختلفو سیمو او مختلفو جهتونو ته ایں دیدلی دی.
دغه عقاید په نورو اریایا نوکی‌دزردشتی دین دراتگ له امله پخپل اصلی حالت پاتی نه شول اودزردشتی دین دریفورمی عقیدې په راتگ سره یی خپل اصلی‌شکل بدل کړ اووروسته داجتماعی اوسیاسی شرایطو اوحالاتو له کبله په زردشتی دین کی‌هم بدلون‌راغی اوبڼه یی بدله شوه.
مگر یوازې دافغانستان شرقی ،جنوبی اودماوراألنهر اریایانوچی خپل پخوانی عقاید یی تر ډیره وخته پورې وساتل اوهغوته یی دستاینی او تقدس په سترگه کتل.
په پای کی پخوانی اریایی‌عقایدیوازی هغو اریا یانوته پاتی شول‌چی دافغانستان په شرقی، جنوبی اوجنوب شرقی اود پخوانی هند په سیموکی خپاره‌شوی‌اومتوطن شوی‌وو.دغو آریایانو خپلی مقدسی ترانی دخپلو روحانیو نو په‌ذریعه ترپیړیوپیړ یوپه یادوساتلی او دخپلو لرغو نو او نویو ارباب الانواعو یادونه‌اوستاینه به یی کوله.
ددغو ترانو او ستاینو څخه دشفاهی ادبیاتو یوه لویه مجموعه جوړه شوې وه چی یوازې دروحانیونو او مخصوصو خلکو په حافظو کی به ساتل کیده او دهرې کورنی دغړوبه‌هم یو څه په یادوو. ددغه ویناو دخوند ورکولوله پاره په دوی کی‌مسلکی خلك پیداشول چې دغه غو ښتنی او کلمات یی دشعر اونظم‌په قالب کی واچول او خاص اهنگونه یی ورته جوړ کړل چی کیفیت یی‌څوځله زیات شو. په دغه ترانواویا سرودونو کی په ارباب الانواعو برسیره ډیری حماسی صحنی هم تمثیل شوی دی او دخپلو یرو دښمنانواو غلیمانو غندنی هم‌په کی راغلی‌دی.
دوی به دغو خوږ ژبو مسلکی روحاینوته ریشیان‌ویل چی مفردیی«ریشی» دی. ریشیان به دخپل وخت‌په متداولو ټولو پوهنو پوهیدل چې اکثرویی مذهبی رنگ دراود او ددوی اجتماعی‌اړخونه یی‌هم احاطه کول.
دغه روحانیون‌هم متبرك،هم‌شاعران، خطیبان اوهم ادیبان گڼل کیدل. دوی به دمشاورینو او روحانیو نودواړو صفتونو دخاوند انوپه څیرپه اجتماعی ژوندکی پوره اهمیت درلوداوپه مذهبی اوسیاسی چاروکی به‌یی خواصو او عواموته لارښوونی کولی. دزراعت او کروندې او داستو گنی دځایو نودودانیو په پر مختگ‌سره دمالکیت پیښی ددوی په اجتما

عی ژوندکی پوره بدلون راوست اویووخت ددغو روحانیو نو څخه یو خاص او جلا کاست یاطبقه جوړه شوه‌چې بحث‌به یی وروسته راشی .
ددغو سرودونو څخه یوازی څلورآثار دهندی اریایانو سره محفوظ‌پاتی شوی ووچی هغوی ددغو شفاهی ادبیاتو لویه خزانه دزمانی دضیاع څخه وساتله اودلیك‌په ذریعه یی‌ثبت‌کړل.
یا‌به بل عبارت موږ اوس‌یوازی‌هغو ترانواو سرود ونو څخه خبر یوچې یوازې شرقی اریایانو ثبت‌کړی دی او دزمانی په تیریدو سره دهغوی په ذوق‌او داجتماعی شرایطو‌په تحول‌سره په کی ډیر‌بدلون راغلی ودهغو نورو سرودونو او ترا نوڅخه ناخبره یو چې‌داموږسیند دپورې او دې‌غاړی او دافغانستان نورو قبایلو‌سره موجود دوو اودژوندانه لاربنو دیی ګټل کیده .
دغه سرودونه چې‌دهندی قبایلو‌په واسطه ساتل شوی او ثبت‌شوی دی اکثره لومړنی اوپخوانی لرغونی‌سرودونه یی دافغانستان په شرقی او جنوب شرقی درواو ورشو ګانوکی‌ویل شوی دی چې داسی ډیرنومونه په‌کی موندل کیږی چی حتی داوسنی‌افغانستان دسیمو اوسیند ونو اوسنی نومونه په‌کی ذکر شوی دی .
داسرودونه سره له دې‌چې دیولوی غنیمت په توګه ترموږه رار سیدلی دی ، مګریو شمیرډیر نوریی‌ضایع شوی او دنور وادیانو په‌راتګ سره یی اوس هیڅ څرك هم نه‌موندل‌کیږی . موږ دغه ورك‌شوی سرودونه دباختر سرودونو په‌نامه یادوو(۱)دغه معلوم اریایی سرودونه هم‌دغه څواثار نه‌دی‌چی اوس موجوددی، بلکی‌دا دآریایی توکم دیولوی ادبی مذهبی اوسیاسی کلتوری اوتمدن یووړاوکوچنی ښکارندوی اوبیلګه ده چې پخوانی فورمونه او بڼی یی له‌مینځه تللی دی او په قوې احتمال سره‌دغه سرود ونه‌دلرغونی اریانا په باخترکی ویل شوی وو ، ځکه چې‌هغه وخت هم اریایانو په باختر کی‌طبیعی قوتونه او سیمبولو نه نمنځل او دهغوی عبادت یی کاوه‌او په دی او سنیو سرودونو کی هم هماغه لرغونی ارباب الانواع پخپل‌قوت او بڼه ساتل شوی دی‌له بلی خواپه دغومو‌ندل شویواومعلوموسرودونوکی‌د «بهلیکا =بلخ» (یا_ګا) او کیانی کورنی دنومو یادونه مؤږته دایقین راکوی چې ددې سرودونو لومړنی ټاټوبی او منشأ حتما په باخترکی وه‌اود مهاجر تونوپه لړ‌کی‌یی ورم او محتوا دواړه په هندکی‌بشپړ شوی‌اوتغییرات‌په‌کی راغلی‌دی.

---

(۱)دافغانستان‌پخوانی تاریخ دبناغلی کهزاد لیکنه

په ویدی سرود ونوکی ترټولو لرغونی ریګ وید (ریګ بید)دی مگر دپوهانو دتحلیل اوتجزیې په رڼاکې داثابته شوی ده چې دغه سرودونه هم ټول دیو وخت او عصر نه دی ، بلکې دډیرو زمانو او دورود شفاهی ادبیاتو اوعقاید ومجموعه ده، نو له دی‌خبری نه داثابتیږی چې‌دغو سرودونو څخه پخوانورې هم دورې‌هم تیری شوی‌دی‌اوله دې‌سرودونو څخه پرته نورې شفاهی ترانې اوعقیدوې سرودونه هم‌موجود ووچې اوس بیخی ورك اوله منځه تللی‌دی.

دوت ( Dutt )پخپل اثر The Afghanistan of India کی لیکی چې :دریګ ودادمتن دډیرواختلافاتو څخه داجوتیږی چې‌دامجموعه دیوې پراخی دورې یوکوچنی اووړپاتی شونی یادګار دی او هغه څرګند تغیرونه چې‌په ویدی دوره‌کی پخپله دسرودونو په ژبه او سبك کی لیدل کیږی داخبره ښکاره کوی چې دویدی‌موجود وسرودونو څخه پخوا خامخا یو څه نورزیات سرودونه هم موجودووچې‌له بده مرغه هیڅ‌ثبت شوی‌نه دی اواوس یی‌هیڅ‌څرك نه ښکارې.(۱)

دریګ ویدپه متونوکی ځای پرځای‌د(پخوانیو پوهانو یا پخوانې سرودونو )جملی او ترکیبونه لیدل‌کیږی‌چې له دې جملو څخه په څرګندډول دا خبره جوتیږی چې ددوی نه‌پخواهم‌په اریایانوکی ریشان او پوهان موجود ووچې همدغسی سرودونه به یی ویلی اوجوړ کړی وی ددغوور کوسر ودونو بیلګی او مظاهر په‌زردشتی او ستاکی لیدلای شو .

اوس به بده نه وی‌چی پخپله دویدي سرودونو دمعرفی په برخه کی‌یو لنډه غونډې اجمالی بیان وړاندې کړو :

## د «وید» کلمه او دویدونو تاریخی‌جریان :

«وید»دپوهنی معنی لری اومقصدترې هغه پوهه او معلومات دی چې ددوی دپوهانو شاعرانو او ادیبانـو له خوا ویل شوی او دمقدسو شفاهی عباراتو په دودیی یاد ساتل . ددی‌پوهی به برخه کی موږ تراوسه پورې څلور کتابونه پیژنو چی نومونه یی دتاریخی قدامت اولرغونتوب په ترتیب سره پـه دې‌ډول دی :

۱ـ ریګ‌وید ـ۲ـ یجروید ـ۳ـ ساوید ـ۴ـ اتهرواوید .چې‌لومړیو اثاروته یی په مجموعی توګه ترای ریدا Tray - veda یادری ګونی‌پو هنی‌ویل اودڅلورم یعنی اتهرویدزمانه وروستنی‌ده‌چی‌دمانو Manu دقانون هم‌زولی اوهم‌عصری‌دی، ځکه‌چې دمانو په قانون کی هم دری‌وید

(۱) دپښتو ادبیاتو تاریخ دپوهاندحبیبی لیکنـه

ونـــه يادشوی دی او څلورم يعنی Atharva-veda ) نوم نشته
او دغـــه دری وید ونـــه يـــی دتـــر ايـــم بـــر هم سنا تنم
Trayam brahma Sanatnam په نامه یادکړی دی ، مګر دمانود
کتاب په یو ځای کی بیاد څلورمویدنوم هم اخلی چې له دې څخه ځرګند
یږی چې څلورم وید هم جوړ شویدیاو میدان ته را وتلی دی .(۱)
دویدی متونو دهغه وخت په هندکی مفسراوفقیه مدهاتیتی Medha-tithi
هم دڅلورم وید نومذکر کړی دی .په لرغونو او پانیشا
دو نوکی چې ډیر پخوانی یـی مندك Mundakya او چهاندوك
Chandogya دی دڅلورم ویدذکر او نوم راغلی دی .داسی نورډ
یرلر غونی هندی آریایی اثار موجوددی چی دڅلورم وید تائید او منبت
کوې .
په هر صورت موږپه منلی تو ګه تراوسه پورې څلور ویدونه پیژ نو
چې دشرقی اریایانو په واسطـــه حفظ او ساتل شوی اوتر موږ پورې
رارسیدلی دی .
ریګ وید یومنظوم اثردی چېداریایانو ډیرلرغونی خواږه اوطبیعی
اشعار یی ساتلی دی .
یجروید یو خاص مقفیاو مسجعرنګ لری ، سام وید یاسماوید دا
هنګونو مجموعه ده اود فورم اوتاریخله مخی یوتر بله سره توپیرلری.
په لومړیو دریوویدونوکی ترټولوډیرلر غونی ریګویدRig-Veda
دییاپه بل عبارت ریګوید دنور وویدونومور یانیاده چې نورویدونه د
همدې وید دافکار رونه متاثردی.(۲)
ویدونه دهغه وخت مقدس عبارات دی چی دنازلی شوې وحی حیثیت
یی درلود پیروانو یيددغو شفاهـــیاثارو تعلیمات کامل ګڼل اودخپل دین
دډیرولوړ واسناد واومدار کوپه سترګه یی ورته کتل . داتعلیمات ددوی
دژوندانه په ټولو شئوناتو حاکماوکنترو لران ووا دوړ ؤکتوب نه دزړ
بنت اومرګ تروخته پورې یی پههره مرحله کی ددوی وظایف او
وجایب ټاکل .
وروستنی ټول نور تعلیمات اوقوانین دهمدې مذهبـــی اسناد وترا
غیزولاندې منځ ته راغلی دی او ټولو مذهبی رسومو عبادتونواواجتماعی
ادا بوور څخه نشئت کړی دی .
که څه هم ددغوويد ونو شمیرڅلورویا دریوته رسیږی ، مګـــر

(۱) ګزیده سرودهای ریګویدا دمقدمی(۱٦) مخ
(۲) ګزیده سرودهای ریګوید !دمقدمی (۱٦) مخ

ډیری نوری رسالی ، لیکنی اوداسی‌نور کتابونــه هم ور پورې نښلول شوی دی‌چې دمذهبی دودونو اونمانځنی اداب اوقوانین په کی تشریح شوی دی .په لنډ ډول‌که چیری ددغولرغو نو ختیځو اریایانو لرغونـــی اثار صنف بندی کړونو په دغولاندې‌څلور وډلویی ویشلای شو .

۱ـسمهیتا (یاسنهیتا)( Samhita چی دوید ونو تفسیــر اوتشریح ده

۲ براهماناګان( Brahmanas چی دوید ونو تفسیر او تشریح ده

۳ـ ارنیکایان ( Aranyakas دی چې په ځنګله کی‌دجوړ وشو یو متنو نو مجموعه ده .

٤ـاوپانیشادونه ( Upanishads چې دویدی فلسفی‌څ یړنه اوبیان‌دی نو په دې ډول سره موږ هرویدکتلای‌شو چې هم براهمانا هم ارنیکااوهم او پانیشاد لری .دریګوید متون یوه‌داسی مجموعه ده‌چې دڅونسلو نود خلګو دافکار ومحصول دی اوله‌همدی‌امله یی په سرودونوکی هم اهنګی او دسبك یووالی نشته اوپه معنوی‌لحاظ یی‌هم سرودونه سره توپیرلری ځکه پخوانی او لرغونی سرودونـــه‌یی طبیعی اوساده متعددو ارباب‌الا نو اعو څخه پیل شوی او وروستی‌یی دفلسفی وجود دوحدت په افکار واغیزه من شوی اویو فکری تحـول‌په کی ښکاری .

له بله خوادمور مشری‌اود تولیدساده دورې اوټولنی نــه نیولی د طبقاتی ټولنی خصوصیات او ممیزات‌سره په ګډه توګه په کی راغلی دی. دیو ژور تحلیل اوتدقیق نه وروسته کیدلای شی‌چې دغه‌سرودونه داقتصا دی او اجتماعی ټولنیز وپرمختګونوپه اساس صنف بندی شی او دهرې اجتماعی اواقتصادی دورې دخصوصیاتوپـــه رڼاکی سره بیل او جلاشی .

په دغو معلومو سرودنوکی یوازی‌دهغو سیمو ، کڅیو ،غرونو سیندونو او جګړونو مونه راغلی دی چې‌سړی‌په زغرده سره ویلای شی چــې‌دغه سرودونه دباختر سیمی څخه دمهاجرت‌نه وروسته ویلی شوی اوډیر لرغو نی یی هغه سرودونه دی چې دهندوکش په جنوبی لمنو او کڅیوکی‌و یلی شوی دی . دغه سرودنه چې‌دشفاهی حالت نه کتبی بڼی ته یی تکامل کړی دی اوتر موږ پورې‌رارسیدلی په پیړیو پیړ یوله یوی‌سینی نه بلی ته اوله یو مغزنه بل ته‌په څوځله نقل شوی دی اوبیا وروسته لیکل شوی دی . سړی دټولو شفاهی‌اثار ودمسیر او جریان لـه مخی دا حکم کولای شی چې دغه سرودونه‌مکمل او بشپړ نه‌دی او برسیره پر دی چې دآریانا دشمالی لمنود سرودونو برخه په‌کی نشته اوهغه ثبت‌نه دی دشرقی اریانا یادهندوکش دجنوبی لمنوټول سرودونه هم په بشپړه

توگه ثبت او ضبطشوی نه دی . یوازې هغه سرودونه ثبت‌شوی دی‌چې دخو پیړ یوپه دوران کی دیونه بل‌ته رانقل شوی اوترهغه وخته پورې رارسیدلی وو . له بله پلوه دځینوارپایی قبیلو ترمنځه دځمکو دمالکیت دتکامل په‌د وره‌کی یولړ اختلافات‌اوشخړی وی چې‌ترډیرو ومودویی‌دوام کړی‌دی . هرې قبیلی یوشمیر ادیبان، شاعران او سرود جوړ وونکـــی لرل او په دغه جګړوکی به یی خپل‌اتلان ستایل اومدحی ترانی اوداریاب الانواعو څخه هیلی اود هغوی‌مرستی‌به یی په‌کی ترسیمولی . نودریگوید پرته دغه ویدونه چی خاص داباسین‌دغاړو دمقتدرو او حاکمو اریایی قبا یلود ذهن سره برابر سرودونه دی‌طبعاً اوحتماهغه سرودونه په‌کی‌ضبط شوی نه‌دی چې‌ددغو آریایانو دمخالفو او معاندو قبایلو دریشیا نو له خو اویل‌شوی اوددوی غند نه اویانوره مخالفه وینا په‌کی شوی وه،یاد هغو قبایلو دخاصو اتلانو اویا ارباب‌الانواعو ستاینه اونمنځه په‌کی راغلی وه .

له بلی خواد زمانی توپیر له‌مخی‌دغه سرودونه په اغلب احتمال‌سره د (۲۰۰۰قم) نه را وروسته وخت‌محصول دی ، یعنی داد هغـه وخت سرودونه دی چې‌دباختر نه‌داوسنی‌افغانستان شرقی ، جنوبی شرقی او جنوبی خواته په مهاجرت پیل کړی‌دی اود اقتصادی تکامل له مخی دوی نوی دپلار مشری په‌دوره‌کی داخلیږی‌اوپه کرونده ، دځمکو په مالکیت‌او اجتماعی تشکیلاتو په بنسټ کیښودلو پیل کوی .

دغه سرودونه چې‌اوس دبشرپه‌لاس کی دی اوپه مختلفو ژبوترجمه شوی اودپوهانو له خواپه‌کی ډیرې‌څیړنی شوی دی موږ دمعلومو سرود ونو په نامه یادوواو هغه سرودونه‌چې دزمانی په اوږده موده‌کی‌دمختلفو پیښوله کبله له منځه تللی اوورک‌شوی دی‌دنامعلومو سرودو نو پـه نامه بولو .

که څه هم ځوک‌په واقعی توگه‌دا ویلی نه‌شی چې دغه نامعلوم سر ودونه څومره ؟کله؟او چیری ورک‌شوی دی ؟مگر داسی اسناداو مدارک دتاریخ او ژبپو هانو په لاس کـــی‌شته چې داتری ثابتیږی چی ددغوسر ودونو څخه دمخه یولړ نورسرودونه‌هم ویل شوی‌وو چې اوس زموږ په لاس‌کی نشته اوداسی تاریخی پیښی‌منځ ته راغلی دی چې ددغوسرودونو ځای نورونو یوشیانو اومواد ودړك کړی‌دی اودغه سرودونه یی له‌منځـه وړی دی .

دریگویدا سرودونه په واقعیت‌کی دلرغونو اودشرقی اریایانو دنو

يو سرودونو داتصال حلقه اوکړی‌ده،ځکه که له یوې خوا دنویو سرودونو سره ارتباط لری اوپیوندونه یی ورسره نښلی ، نوله بله پلوه په‌کی داسی سرودونه ، عبارات اوجملی راغلی دی چې دپخوانیو سرودونو، پخو انیو ریشیا نواو نوروسند رویادونه کوی . مثلادریګویدا په ځینو سرود ونو کــی داسی جملی راغلی دی ؛«پخوانی پوهان» یا«پخوانی‌سرودونه» چې ددې فقرو څخــه موږ په دې‌پوهیږ وچې‌دآریایانو ذهنی او فکری محصول یوازې همدغه معلوم سرودونه نه وو، بلکې دوی دویدی معلو مو سرودونو دزمانی څخه پخواپــــه (٥ــ٦) سووکلونوکی حتما داسی نور ډیر شفاهی ادبیات لرل چې اوس‌له منځه تللی دی .

له بل پلوه دریګویدا اوګاتونودژبوډیر نژدی ورته‌والی چې ترډیره وخته پورې یی اروپایی پوهان په‌دې اشتباه کی اچولی ووچې ګوندې دګاتونو ژبه دویدی ژبی اوښتی اومنحرفه بڼه ده داثابتوی چې یووخت پــه لرغونی اریانا (لرغونی باختر)کی ددغو قبایلو ژبه سره یوه‌وه او بیاوروسته په‌کی لهجوی انشعاب اوبیلتون راغلی اونورې ژبی‌تری‌جوړ ې‌شوی دی.

موږ داسی اټکل کولا شوچې یووخت داسی وچې داموسیند دواړوخو او د «اریك»ژبی نه وروسته یوه‌بله مشترکه ژبه هم درلوده چې دد غواریایانو او سنیو ژبو مور وه.

څرنګه چې معلوم سرودونه اکثرادهندوکش په جنوبی او شرقی درو ، داباسین پر غاړو او دپنجاب په‌ورشو ګانو کی ویل شوی دی ، نونا معلوم سرودونه‌د هندوکش په شمالی درو ، ورشو ګانواو دخوړونو په کڅیوکی هغه وخت ویل‌شوی دی چې‌داریایی قبایلو شمیر ډیرنه واوپه همدغو ځمکو بسیا وو او داجتماعی‌او اقتصادی تشکیلاتو له پلوه یی دومره پر مختګ کړی‌نه و. دزردشتی‌دین تر راتګه پورې دټولو شرقی‌اریا یانو ترمنځ دغه سرودونه یوشان‌وواو په عقاید و، افکارو ، دودو نو اوکلتورکی یی سره توپیرنه و، مګردمهاجرتو نو او بیلو ، بیلواجتماعی او اقتصادی پیښبنودراتګ په اثرپی‌پــه ټولو اړخونو کــی ورځ‌په ورځ اختلافات پیدا کیدل اویوتر بله سره‌لیری کیدل .

د«وید» کلمه بنایي ډیره پخوانۍوي اوممکن چې په لرغوني اریاناکې به هم داسې سرودونه ووچې دغـواریایانو به د غه سندري اونغمې مقد سې ګڼلې او«وید» به یې ورته وایه . که څه هم موږ داوستا اووید ونود مذهبي افکار ودمقایسې په صورت دې نتیجې ته رسیږو چې ددوی دعقا ید واونورو فکري اوشعوري اثاروترمنځ ډیر نژدیوالی اوپیوستون لیدل کیږي اولکه څرنګه چې دریګویدانه پرته نورویدونه ددوی د اجتماعي، اقتصادي او فکري انکشاف خاص مراحل څرګندوي .زردشتي دین هم ددوی داجتماعي تشکیلاتو یوه انقلابي اوپرمختللې بڼه ده چې دوی دشرایطو له مخې مجبورو وچې پخپلو عقاید وکې هم تغییر او بدلون را ولي .
موږ دلته دویدي سرودونو سره نورڅه کارنه لرواویوازې دهغو بر خوسره علاقه لرو چې په هغوکې زموږ دلرغوني هیواد دکلتور او تمدن په اړ خونو څه رڼاچولې شي اودژوندانه په مختلفو مراحلو اوتکاملي پړاوونو په برخه کې یې څه ناڅه معلومات راکوي .

## اجتماعي بڼه او تشکیلات :

لکه څرنګه چې دمخه مو وویل چې په اریایي ټولنه کې دکروند ګرو اولسو نوپه منځ کې دمالکیت په پیدا کیدوسره دښځو مقام له پخواني برمه را ولوید اونارینه ویې ورځ پـه ورځ صلاحیتو نه ځان ته منحصر کول او مقام یې لوړیده چې په پای کې دبل اجتماعي مترقي پړاوته په رسیدلـو سره یې دمشریا «پاتي Pati »مقام ونیو اودمریي توب دوره پیل کیږي مګرپه پونده واو کوچیانو کې تـرډیره وختــه پورې دښځو مقـام د اقتصادي صلاحیت له کبله پر ځای پاتي شو او دکروند ګرو ټولنو په نسبت یې مقام تنزل ونه کړ . ځکه چې په پوونده ټولنوکې شخصي ما لکیت (پرته له څاروېوڅخه )موجود نه واود مالونو ورشوګاني دقبیلې مشترک مال ګڼل کیده او فردي مالکیت پـرمختګ کولی نه شو اوپه کوچیانيژو ندکې دکروند ګرو په اندازه دمریانوڅخه استفاده نه شوه کیدلای .
مګر له بده مرغه یو بل مهم عامل پیدا شو چې په پوونده قبایلوکې هم دښځو مقام دپخوا په نسبت راټیټ شواو نارینه دښځې په نسبت دډیرو صلاحیتو نو خاوند شو .

څرنګه چې د(۲۰۰۰ق م)په شاوخواکې اریایانو دځمکې او ورشو ګا نود تنګوالي او دنفوسو دډیروالي له امله په پوونده بڼه مهاجرتونه پیل کړل ، نوله یوې خوایې دورشوګانواواستوګنې ځایونه په سردنور وقبایلو سره جنګونه راغلل او له بلې خوایې دځینو عواملوپه اثر پخپلو منځو کې هم یو تر بله شخړې اولا نجې پیدا شوې چې دغه مهاجر قبایل له

یوی خوا مجبورشول چې خپل بشری‌قوتونـه سره متحد کړی او پخپلو منځوکی اجتماعی تشکیلاتو او اولسی‌جرګوتـه خپل پام واړوی ، نودوی مجبور وو چی خپل ځوانان اود جنګ‌افراد چی حتما به نارینه وومنظم کړ ی او دمقابل لوری جنګ‌ته یی ولیږی‌او دخپل ژوندانه دبقاپه خاطر مقامت وکړی نواریایان چې هغه وخت دنوروقومونو پـه نسبت زیړه او زړه ور وو پخپلو حریفانو باندې دغلبی نه‌وروسته فاتح مشران او زړه ور ځو انان دروحانیو نو ښځـو او نرو اوسپیـــن ږیـرو لـــه خـــوا نمـا نځـل کیـدل او ستـاینــه بــه یـی‌کیدله . همدی جنګو نواوجګړودنارینه ومقام ته یوقوت ورکړ اومقام یـی‌لوړ شو .

داهم یو مجبوریت واو په اجتماعی‌ژوندکی پر مختګ ودهمدې پروسی پربنا په دوی کی یولړ اجتماعی نورتشکیلات هـم منځ ته راغلل چـې که څه‌هم ښځو به په‌کی ګډون کاوه ، مګر اداری صلاحیت یی‌دنارینه وپه لاس‌کی و . دزمانی په تیریدوسره دهمداسی پیښو په‌اثرچې اکثره به‌دنو یو ورشوګانو اوتاټو بو پـه‌سرجګړوته مجبور یدل په دوی کی موقتی او دایمی جرګی او مجلسونه‌رایج شول .

له بلی خوا په دوی کی اجتماعی‌اولسی مفاهیم رایج شول.دکورنی‌نه ئیولی دټولی قبیلی دسیمی اومحیط‌دپیژندنی له پاره یی یولړ مفاهیـــم وضع کړل او هر واحد ته یی یونوم‌کیښود چې‌دغه تشکیلات په عنعنوی توګه په دوی کی پاتی شول‌او حتی‌ترنن ورځی پورې اوس‌هم دغه نو مونه دافغانستان په ختیځو ولایاتوکی پخپل پخوانی شکل اوفورم پاتی دی چې اوس یی اکثره خلك په معنی نه پوهیږی او ځینو میرزا یانویی‌هم شکل وربدل کړی دی .

دایوه خبره باید په یادو لرو چې‌دافغانستان په شرقی سیموکی دشما لی سیمو په نسبت دغوایانو روزنی‌ډیر پر مختګ وکړ اودغوا یانو په څنګ کی‌دګندهارا په حوزه‌کی وزې‌او پسونه هم روزل کیدل ، مګر هغه لوړ مقام چې ددوی په نزد غوایانواو خصوصا لنګوغوا ګا نـو در لود او دتقدس مقام‌یی ونیو پسونو اووزو دومره مقدس او اوچت حیثیت نه درلود ځکه چې ددوی اکثره اجتماعی‌ویشونه او تشکیلات دغوایا نو دور شو ګانو ، پنډ غالو او روزنځیو په‌اساس کیدل او ددوی بشری اولسی نظام هم په همدغو نو موباد یده .

دویدی عصر کورنۍ چې دوی به «کولا Kula » بلله په پښتنوکی اوس هم د«کهول ـ کوول»کلمه دکورنی دغړو مجموعی ته ویل کیږی . دا لومړنی تشکیل وچې پـه تدریج‌سره عشیری او قبیلی دبر خوویش

ته رسیده دویدی سردونو دیادونوله مخی ښځو او نرو په ډیروبر خو
کی مساوی اوسم سمکی حقوق‌درلودل، مګر بیا همد ذکر شویو دلایلو او
دکروندې سره دبلدید لو په‌اثر په‌جنسی حقوقوکی نارینه ته داولیت
مقام ورکړ شوی و، ځکه‌چې په ویدی‌سرودونوکی اکثرا دکورنی په غړو
کی لومړی دنارینه ونومونه اخیستل‌کیږی او بیا وروسته مور او لورد
پلار او زوی نه وروسته یادیږی .خو بیاهم یو شمیر شاعرانی اوریشیا
نی ښځی په‌کی وې چې ستر روحانی‌موقفونه یی په برخه شوی وو.(۱)

اوس غواړو چې ددوی په اجتماعی‌ژوندکی دهغو کلماتو تشریح اویا
دونـه وکړ وچې دهمدی پوونده واقتصادی منبع ، یعنی غوایانو پـه
نامـه پوری منسوب عشیـروی اوقبیلوی مراتب پری مرتب‌او جوړشوی
وو :

ګوترا : Gothra ګوشتی د ګوترا یا Goshti کلمه ددوی
دعشیروی کالونی یا ټاټوبی په مقابل کی استعمالیده چې معنی یی ؛
(دغوایا نو روزنځی یاپنډ غالی) دی‌چې یوی‌طایفی یاعشیری بـه دخپلو
مالونه له پاره یوه مشترك ورشو اوګډپنډ غالی درلود . اوددغه پنډغالی
مشراواداره چی ته به‌یی «ګوتراپاتی»وایه چې دده دمشری لاندې به‌دغه
مالونه او غوایان روزل کیدل اودوښوورشو ګانو نورو تربیوی چارو اداره
به‌یی کوله . دوی‌به دغوایانو مشترکی ورشو او څړځای ته ګوشتـــــــه
Ghoshta )ویل . دغه کلمه‌اوس‌هم دننګرهار ولایت دکابل سیند
په کوزنی برخه کی ژوندی ده او دیــوې‌او لسوالی نــوم دی (۲) .
دغه سیمه واقعا له یوی خوادسیندد‌غاړو دپراخی طبیعی ورشو او لـه
بلی خوا دنژدې غرو دلمنو په لرلوسره دغوا یانو یوغوره روزنځـی او
پالنځی دی .

ګرامه :په‌دې کلمه کی هم دغوایی مفهوم پروت دی‌او اوس هم په
ځینو پښتنی سیموکی «ګورم» هغی‌پادې ته ویل کیږی چې دیواولس‌یا
قریی دټولو خلکو دغوایا نو مجموعه‌وی که څه هم ځینو خلکو دغه کلمه
دمطلق «اولس» یا عشیری په مفهوم‌تعبیر کړې ده مګر زیات احتمال دادی
چې درسته ده چې دا ولس معنـــی‌ورکوی ، مګر هغه اولس چې‌دغوایا

---

(۱) دافغانستان پخوانی تاریخ (٤)مخ
۲ــ په‌یوه پښتو متل‌کی ددغې سیمی‌نوم داسی یادشوی دی ؟(په ګوشته
کې ځوانان شته )

نوله پاره یی یوه مشترك ورشودرلوده اویاپه بل‌عبارت چی غوایان یی یو ځای څریدل . (۱)

گوجانا :داکلمه هم دگوشتی پهڅیر دیو اولس او عشیری مشترکی ورشو یاپنډ غالی ته ویل کیدل ،مگر دگوشتی په اندازه به پراخه نه وه . دغه کلمه اوس هم په همدی‌بڼه دشینوارو دهسکی مینی په او لسوالی کی ژوندۍ ده اود یوې‌داسی‌قریی نوم دی چې‌دازارنا وخوړ په غاړه پرته ده‌اوهم پراخه غرنی ورشوپه څنګ کی لرې چې دغه نوم اوس په یوڅه تغییر سره په (گجڼه Gajana )

یا دیږی اواوس یی څوك‌په اصلی‌معنی نه پوهیږی .

ویلای شوچې دڅو گجڼو څخه یوه‌گوشته او دڅو گوشتو مجموعی ته به یی «گرامه» ویل . اودڅو گرامه مجموعی ته به یی «ویس» وایه . د اجتماعی او اقتصادی پرمختګ او دځینو دفاعی چارولهٔ کبله دوی په یو لږ نورو اجتماعی مراتبو هم مجبورشول اودمشر توب اوکشر توب ، اتحاد او اطاعت مفاهیم په‌کی رایج‌شول . دوی دگرامه ، گو جانا ، او ویس دچارو دتنظیم اوسون اوداجتماعی اتحاد له پاره واړه اولوی مشران وټاکل چې‌تر ټولو لوی، یعنی دقبیلی‌مشر به «ویس‌پاتی» یا«راجا» بلل کیده . (۲)

تردغه وخته پورې چې ددوی‌ژوند اساسا په مالداری متکی واو کو چیانی بڼه یی درلوده‌اود ځمکی‌شخصی‌مالکیت لاپه‌کی دومره پوخ او منظم حالت نه درلود . که څه‌هم په دوی‌کی‌اجتماعی مراتب منځ ته راغلی وو ، مگر (ویس‌پاتی) اوراجا په‌دغو کوچیو او لسونو کی دمطلقیت مرحلی ته رسیدلی نه و بلکې یوډول دیموکراتیك او مذهبی اصول ووچې ددوی په ژوندیی حاکمیت درلود او رئیس‌او مشربه دنورو مشرا نوله خواټا کل کیده او لیری کول اوپر ځای یی‌دبل مشر ټاکل دومره گران کار نه و ځ،که چې هغه وخت دقدرت پایی‌او ارگان یوازې قبیلوی محبوبیت او قبیلوی قدرت وچې دخلکو له خواورکول کیدای شو اوبیرته ترې هم اخیستل کیدای شو .

دویدی عصر اریایانو دخپلو ماتوگودو درغو لو اولا نجود حلولو له

---

۱ـ په پښتو کلاسیکو ادبیاتو کې د(عشیری ، څوعشیرو دمجموعی )معنا یې‌لرله ـوگوری (زړه پانګه )
(۲)دافغانستان پخوانی تاریخ

پاره داسې نور اجتماعي تشکیلات هم لرل چې اوس يې هم په اکثرو پښتني قبايلو کې دپاتې شوني په توګه دجرګې اودجرګې دمشخصو افراد ووجود او مقررات ترنن ورځې پورې پاتې دی. په ويدي عصر کې دقبيلو دداخلي او خارجي مسايلو اولانجو په برخه کې دلازمو اقداماتو او تجويز ونو دنيو لوله پاره دوه مهمې جرګې موجودې وې چې يوه به نسبتا وړه اوپه کلي او اولس کې به جوړيدله او لازمي اولسي ديمو کراتيکي فيصلې به يې کولې . ديو اولس او قريې خلك به سره راغونډ شول چې ښځو به هم په کې ګډون کاوه او داولس ماتـې ګوډې به يې رغولې چې دې مجلس ته به يې سبها(Sabha )وايه چې اوس هم دهمدې کلمې په استنا د دهند اولس جرګې ته «لوک سبها» يعنې (دخلکو جرګه) ويل کيږي .د دې جرګې دصلاحيتو نو او تصميمونو سيمه به کوچنې او وړه وه اود محلي خلکو داخلي لانجې بـه يـې فيصله کولې .

دويم مجلس چې د«سميتي» په نامه ياديده دڅوګوشتو اوحتى ويسو نو مشرانو به دکومې مهمې پيښې په پيدا کيدلو سره لويه غونډه جوړو له اودمشرانود بحث او مباحثې نه وروسته به يې درايو په اکثريت سره لازمي فيصلې کولې او ددوی لـوی مشر يا راجا به په کې هم ګډون کاوه . په بحثونو اودافکارو په اظهار به هيڅ راز قيد اوبند يزنه و ، بلکې هر مشر به خپل نظريات او افکار په ازادانه توګه څرګند ول اودنور و له خوا به پرې غور کيده .

دريګويد ديو سرودنه داســـې څرګند يزي چې تر دغه وخته پورې په دوی کې دثروت معيار يوازې څاروي او مالونه وواود ځمکې مالکيت لا په دوی کې دومره اهميت پيدا کړی نه و. په يو سرودکې داندرارب النوع ته داسې خطاب کوې ؛«اې اندرا !ستاملګری يعنې هغه کسان چې اسونه ،ګا ډې ، رمې او شتمنې لري په سميتي جرګه کې ګډون کوي .» (۱)
ددې سرودنه دوه خبرې څرګنديزي ؛

يوه داچې په دوی کې په اجتماعي او اقتصادي توګه دمالونود ډيرښت اودمالداری دثروت په اساس اجتماعي توپير پيدا شوی و .

دويمه داچې دثروت معيار يوازې څاروی وواو ددغــه ثروت دډيرښت له کبله دوی ديو امتياز خاوندان شوي ووچې دمشرانو په جرګه کې يې دګډون حق ترلاسه کولای شو .دغو جرګو له بلې خوا دمقننه قوی حيثيت درلود او ددوی موضوعــــه مقررات به پخپلو ټولو مربوطو او

(۱) دافغانستان پخوانی تاريخ

لسونو کی نافذوو او په اجتماعیژوندکی به پری عمل کیده . ددغو اولسی مقرراتو څخه دسرغړ وونکوله پاره مجازات هم وو . چابه چېددوی دفیصلو اومقرراتو څخه په ښکاره‌توګه مخالفت کاوه نولومړی به یی ور باندې اقتصادی او اجتماعی تعذیرات او بند یزونه ولګول اومجرم به یی په تجرید کی پریښود . پـــه پښتنی قبایلو کی ددغو بند یزونو دود په ډیر شدت سره عملی کیږیچې دوی ورته «دتیږی غورځـول ، ناغه پرې ایښودل»وایی چې مفهوم‌یی دمجرم سره دهرراز روابطو پری کول دی او پخپلو ټولو اجتماعی شئوناتو کیدمجرم‌دبرخی‌اخیستو محرومیت دی.دمجرم سره‌به‌هیڅ رازتعاون اومرسته دهیچا له خوانه کیږی او که چاور سره روابط وساتل اویایی ورسره مرسته وکړه ، نودوضع شوی تړون له مخی دهغه سره هم هماغسیچلند کیږی .

که‌چیری به جرم شدید واوشرم‌او خجالت به یی ډیرو خلکوته راجع کیده ، نو مجازات به یی سخت اوداقتصادی او اجتماعی بندیزونو څخه برسیره دمجرم دسر اوځان دخطـــراحتمال هم موجود و . دغه دودهـــم اوس په پښتنو کی رواج لری اوهغیته «سیغ کول» وایی. په شینوارو کی دغه‌مفهوم اودود په ډیر شدت‌سره اوس هم جریان لری . دسیغ کولو څخه مقصد دادی چې دمجرم دشتمنی په اندازه څاروی او پسونـه اخلی اوقربانوی یی .

البته پخوادغه مالونه ددوی دیورپ النوع له‌پاره نذرانه کیدل او ټولو خلکو به دهغه اورد پاسه چیدوی به بل کړی و وریتی شوی او په سیخونو کی ټومبلیغوښی خوړلی‌او دریشیانو او مشرانو له‌خوا به په خاصو مراسمو سره ورته ویشل‌کیدلی مگر اوس یوازی دغه دود د اقتصادی او اجتماعی مجازاتو له پاره‌پاتی دی اونور رسمونه یی له منځه تللی دی .

دویدی عصر په پوونده قبایلوکی یوراز خاصه دیموکراسی وه‌چې اوس یی نمونه په نړی کی موندلی‌نه‌شو . هلته دایمی اومستقر حکومت او دولت وجودنه درلود اوداجتماعی‌مراتبو سلسلی یی هم کومه خاصه بنه‌نه درلوده ،بلکې‌ده رې مرتبی‌شخص به په فعالانه توګه پخپلوور ځنیو چارو بوخت واو دانسان څخه‌دانسان داستفادی (استثمار) شکل‌په کی بیخی وجود نه درلود . مگردغه‌پوونده قبایلو بیا هم یولړ قوانین او مقررات درلودل چې په مذهبـــیرنگ به ککړوو او دځینو اجتماعی مقرراتو پر ځای کولوکی به‌یی هم دخپلو ارباب الانواعو خوشحالی ګڼله

او مخالفت به یی دهغوی دقهراوغضب‌درا پارلو باعث‌گاڼه . څومره چې دو
یدی عصر قبایلو دخپلو مهاجرتو نوپه لړکی شرقی او غربی هیوادوته
لیږ دیدل‌او دنور وغیر اریایی قبایلوسره مخامخ کیدل هماغو مره یی‌په
ژوندانه کی بدلون او توپیر پیښیده‌اودځمکو دمالکیتونو او دایمی جایداد
ونودتصاحب له امله یی په اجتماعی‌مراتبو کی تغییراو بدلون پیښیده‌او
ددایمی ثباتونو په استقرار سره یی‌طبقاتی تضاد ونه دو څاره کیدل .
لکه چې دمخه موویل دځمکی دمالکیت په انکشاف سره په دوی کی
دیو انسان استفاده دبل انسان څخه پیل شوه اودجګړو بندیان بـه یی‌د
خپلو کارونو داجرا کولولـــه پاره‌استخداموله اوبزګری چې یووخت په
اریایانوکی دیو ډیر شریف شغل په‌صفت یادیده وروسته یوټیټ شغل
وګڼل شـو اوپخپلـــه آریایانـــوکـــه څـــه هـم دځمکـو اصلـی
خاوندان به وو ددهقانی چاروته لاس‌نه نژدی کـــاوه .
داریانا په دننه سیموکی بیاهم‌داسی قبایل موجود وو چې دپرا خو
ځمکو خاوندان او دیشین وو ، مګربیا هم په‌دوی کی یو ډول دځمکـو
اشتراکیت وجود درلـودچی دمغولوتر زمانی پورې یی دودونه اوقوانین
پخپل حال پاتی وو، په داسی توګه‌چې دقبایلو تر منځ چې کومی دکرو
ندې ځمکی ویشل شوی وې‌څوکاله به یوی قبیلی ورڅخه استفاده کوله
او بلـی قبیلــــی به دبلی ځمکی‌څخــه ګټــه اخیستـه دڅاکلـــی
وخـت نـــه وروسته به دغه ځمکی‌یوتر بله سره بدلیدلی اوبیا به د
څوکالو له پاره یوې قبیلی دبلـی په ځمکو واړول . طبیعی منابع ، ورشو
ګانی ځنګلو نه او داوبه خور ډیروسایل اوس هم‌په اکثرو قبایلو کی
شریك مال ګڼل کیزی او عامه استفاده ترې کیږی .
واده :لکه چې دمخه موویلی دی‌څومره چې ژوند پر مختګ کـاوه او
پیچلی کیده په هماغه اندازه پــه‌اجتماعی مناسباتو کی تغیرراته او
مغلقه بڼــه یی پیدا کوله . دواده‌اصول دویدی عصرپه لومړیو پړاوو
نوکی ډیر ساده او بسیـط وو او دمستقیمی موافقی او خوښونی څخــه
وروسته په ساده ، مګرمذهبی اصولو سرته رسیده . البته دمور مشری
په دوره‌کی حالات بل‌شان ووچې بحث‌یی دمخه تیرشوی دی ، مګر دپلار
مشری په عصرکی دپلار او مور اوحتی ورور موافقه شرط وه اودخوښو
نی اوانتخاب په مسئله باندی یوڅه قیود وضع شول . البته دغه قیود
بیاهم دومره سخت نه وواود انتخاب‌قطعی خنډ نه واقع کیده .ځکـه چې
په دوی کی‌ځینی داسی‌میلی اوجشنونه ووچې هلته به نراوښځی ځوانان
او زاړه په ازادانه توګه سره ګډوډګر ځیدل چې ددغو جشنونو څخه یی

ډیر مشهور جشن د «سامانه» په نوم یادیده چې ددغو ځوانانو به خپل ډیر ښایسته کالی اغوستل اودپیغلو اوزلمیانو له پاره یوتر بله دانتخاب بهتر ینه او غوره موقع وه .(۱)

دنوی کال میله هم ډیره پخوانی ده مگر کله چې دوی ډیر وتودو اود استوا کرښی نژدې مدارو نو ته ورسیدل او ځینی قبایل په سړوسیمو کی پاتی شول دجغرافیایی محیطدتوپیر په اثر په دغو میلو کی یو لړ څه توپیر ونه پیدا شول .

دپلارواکی په دوره کی چې دوی دیشین شول اوپه ژوندکی یی ستر اجتماعی او اقتصادی تحولات پیداشول دواده په مسئله کی هم کړکیچونه دو څاره کیدل .

دمور مشری په عصر کی نارینه دښځی کورته راودیده اوپه اصطلاح دطلاق صلاحیت هم دښځی په لاس کی و، مگروروسته دپلارمشری په عصر کی به ښځه دنارینه کورته راودیده او دولور منحوس دود په دوی کی هیڅ رایج نه وکه څه هم مالی تحفوپه کی اهمیت درلود.دواده اساس په عشق اومینه ټینگ او غایه اوهدف به په کی داولاد پیدا کول وو. بی اولا دی په دوی کی دومره لوی غم گڼل کیده چې گواکی بی اولاده میړه او ښځه هیڅ نه لری .په ویدې سرودونو کی دار باب الانواعو څخه ډیره کلکه هیله داولاد ده،اودغه داولادغوښتنی په باب ډیر شفاهی ادبیات اوس هم په اکثرو پښتنی قبایلو کی موجوددی چې دې ته دښځی لمن زرغونیدل وایی . دبیټ نیکه دعا اوهیله کټه مټه دویدی سرودونو داولاد غوښتنی د هیلو سره سمون خوری .

په دغه لاندې سرودکی له یوی خوادبشر دیوې طبیعی غریزی دتمایل ترسیم شوی دی او له بله پلوه داښکاره کوی چې دښځو په نسبت نا رینه فوقیت او لوړ اجتماعی موقف درلود . سرود دادی :

«زلمیان دپیغلو له آوازسره دومره مینه ده لکه چې رب النوع خپله ستا ینه دبشر له خولی واورې .»

دوی به په ودونو کی خاص دودونه لرل اتڼونه ، نڅاوی ، موسیقی اوسندری به په هره ښادی کی معمول رسم او دودو . ښځو اونر ودواړو به په کی گډون کاوه

مجرد اویلغوز ژوند په دوی کی لوی عیب واو خلکو به ورته په سپکه سترگه کتل . لکه چې په سرودکی دواده ضرورت ته داسی اشا

(۱)دافغانستان پخوانی تاریخ دکهزادلیکنه .

ره شوې ده ؛«ښځه دسړي له پاره دومره ضرورده لکه چې ژی دلیندې له پاره ضرورد ه»(۱)

هغه وخت چې په اریایي ټولنو کی طبقاتي تضادونو شدت موندلی نه و ، نود پلار مشری په دوره کی هم یوه ښځه رایج وه ، مګر کله چې طبقات اودولت منځ ته راغی دلویـانواو روحانیو نوله خوا دځوښځو کول او ساتل رایج شول .په عامو خلکو کی دویم واده ډیره لږاو نادرشو . ښځه به دنکاح دیوه معمولـی عبارت نه وروسته چې دمیړه له خوا بـه ویل کیده کورته راوستل کیده اودکورنی نغری داورنه به یې په داسی حال کی څوځلی ګرځوله چې ښځه به مخکی او میړه به ورپسی روان و .د نغری اور ددوی په نزد ډیر مقدس واو دغو ګرځیدلو لوی فلسفی مفهوم درلود .

## سوما ـ یاهوما :

دغه دیوبوټی نوم دی چې اوس په پښتوکی د«اومه» Ouma په نامه مشهور دی (۲). پاڼی نه لری اومنډوکی یی بندونه لری . دبوټی ونه وړه ده اوپه غرنیو سیموکـی شین کیږی . دمنډو کومنځو نه ډډوی او دوینی په څیر سور رنګ لری.په فلکلوری طب کی دډیرو مر ضو نو اوزخمونو له پاره استعمالیږی .ددی بوټی څخه په ویدی او اوستایی عصرونوکی یوډول مخصوص شراب جوړیدل چې دوی به دمیلوا وجشنونو او داسی نورو ښادیو په مراسموکی څښل او مستی اوجرئت به یې ورکاوه په دی مشروب کی به نور لبنیات اوخواږه مواد لکـه شات هم ګډ یدل او په مخصوصو مراسمو سره بـه دپیغلو نجونو له خوا دسپوږمی په شپه راشکول کیدل اودریشیا نوله خوابه دسوما دمخصوصو سرودونو په ویلو سره په مخصوصو لوښوکی ټکول کیدل اوبیا به تخمیر کیدل . دامشروب او بوټی په دوی کی ډیر مقدس واو اکثراً دقربانیو په مراسموکی هم تری کار اخیستل کیده . ددې بوټی له پاره یی په همدی نامه یوخاص رب النوع ټا کلی واو دنورو نعمتو نو هیلی به یی هم ورځینی کولی.دسومارب النوع یی دخلکو او نورو ارباب الانواعو تـرمنځ دقربانیو او دسوما دشرابو رسو ونکی باله . خصوصا «اندرا» چې د«وارونا» نه وروسته دویم رب النوع

(۱) دافغانستان پښتوانی تاریخ(۱۵٤)مخ

۲ ـ ددغو بوټی نوم په زړه یونانی کی ـ Ephedra دی په لوید یځو طبی کتابونو کی په همدغه نامه پیژندل کیږی .

واود جنگ ګټونکي اومرستیال بلل‌کیده دسوما په ذریعه ددوی حامی‌او مددګار ګرځیده . نودوی به دسومایاهو ماشراب‌دکوم سیند په غاړه‌ښتل اودخپلی عقیدی سره سم به‌یی دهوماپه واسطه داندرا توجه جلبوله .

دسوماشیره به‌دتخمرنه وروسته‌دوړینو دستمالو اوصافیو څخه چنید له او بیا په یولوی لرګین خم کـی‌اچول کیده اود پخیدلو اوجوش تـر مرحلی پوری به‌پریښودل کیده کله به چې په جوش راغله اودتخمرموده به‌یی پوره شوه ، نو په مخصوصوکاسوکی به دروحانیونو په ذریعه ویشل کیده او ټولو به‌په ګډه دریشی ترلارښوونی لاندې مقدسی سند ری ویلی اوراز راز دعاګانی او هیلی‌به‌یی کولی . دوی به اکثرا دباران غوښتلو مراسم هم‌دسوما دشرابو په‌څښلوسره اجرأ کول او غوښتل به یی چې خدایان باید اوس خوشحال‌شوی وی اودغه لوښی چې موږ‌په‌کی دسوما نذرانه ارباب الانواعو ته وړاندې کړه باید چې‌له بارانه ډك شی لوښی بـه یی ترډیره وختـه پـورې په داګ پریښی وواوزریی کورته نه وړل . (۱)

دسوما کلمه چې په اوستاکی‌هوماراغلی ده عینا همدغه مفهوم لری اودغه مشروب په اوستایی‌دوره‌کی‌هم‌رواج درلود ، که څه هم په‌ګاتو نوکی په‌صریحه لهجه ددې مشروب‌غندنه شوی‌ده مګر دزرردشتی دین‌د تحولاتو له امله بیرته مقدس ګڼل‌شوی اوپخوانی ویدی دود بیرته تازه شوی دی . دهوما شراب په اوستایی‌دوره‌کی هم مقدس‌وواو په مخصوصو دودونو سره به دپخوا په شان دغه‌شراب جوړیدل اوروحانیو نوبه پر مخصوصو تشریفاتو سره خلکو تـه‌ویشل اونذرانی به‌یی وړاندی کولی . د هـو مـا پـه باب پـه‌اوستا کـی یـو مخصـو صـه افسا نه راغلی چې داساطیر ولـه‌جملی څخه ده او دهغوځایو نو نومو نه اخلی چې دغه بوټی په‌کی شین‌کیږی . دغه ځایونه ټول په اوسنی افغانستان کی په ډیرکم اسمی تغییرسره اوس هم موجود دی . لـه دې جغرافیایی معلوماتو ځینی داسی اسناد په لاس راځی چی‌ویدی سرودونه اوزردشتی دین دواړه په‌همدی خاوره‌کی پیدا شوی ، روزل شوی او ورو سته بیا شرقا اوغربا نورو اریایی‌قبایلوته خپاره شوی دی .

په اوستاکی دغه افسانه پـه دی‌ډول ده ؛

دهومابوټی په‌اسمانونوکی ؤ یوګوربت چې سینا نومیده دغه بوټـی یی‌دهرا برزیتی (هریتی بریزا) Haratibareza

---

(۱) برګزیده سرود های ریګویدا ـ۳۰۶ـ ۳۰۷ مخونه

دغره له پاسه کیښود اوله دی لوړوغرونو څخه یی بیا واخیست او په «یوپایی ری سینا ـ دګوربت ترا لوتولوړ» یعنی هندوکش په لوړوغرو نو ، ستیرا Staeraدتیرا په غرونو ، کوسرا دا(دغورد کوراسون غرونه)په پاورنه (پروان)سپی تاګونا ګیری (سپین غر) اونور وغرونو دپاسه یی خپور کړ . (۱)

په اتهرویدکی ددې ګیاه دشنه کیدو ځای «موجاوات» یعنی داوسنی منجان غرچې دبدخشان او نورستان ترمنځ لوړ غردی یادشوی دی (۲)

امکان لری چې دغه مشروب داسلام تر راتګه پورې په افغانستان کی موجود وی مګر داسلام دین په راتګه سره یی جوړول منع شوی او له منځه تللی وی . دافغانستان په اکثرو تاریخی کیندونوکی یوډول لوی ختین پاخه خمونه موندل کیږی چې اکثرا احتمال لری دهمدې مشروب د جوړ ولوله پاره جوړ شوی وی اونمونی یی په هر ځان کی‌زښتی‌ډیری دی

اوس بده نه ده چې‌دویدی کلتورنه وروسته په خاصه توګه داریا یی قبایلو په مهاجرت یوڅه رڼاواچوواوو ګورو هغه قبایل چې دغرب ، شرق اوجنوب شرق خواته لاړل‌څه نومیدل او څنګه خپاره شول .

## له اریانا څخه هند اوفارس تـه دځینواریایی قبایلو مهاجرت اوخپریدل

هغه وخت چې اریایی کوچیو اوپوونده قبایلو داریانا څخه هرې خواته هجرت کاوه پخپله داریانا دهغه وخت‌مرکـز ، یعنی لرغونـی باختر او اوسنی افغانستان کـی ځای‌پرځای‌دایمی اولسونه میشته‌شوی اونسبتا داجتماعی ژوند ډیر پړاوونه یی تیرکړی وو. دغه دایمی استوګن چې‌عمو مأکروند ګراو دځمکـو مالکان وو دپخوکلاګا نو او ابتدایی ښاری ژوند خاوندان وو . دوی دخپل لومړنی مدنیت اساس په کندوز اوبغلان او دا سی نورو کلتوری اواقتصادی مرکزونو اوسمسورو سیموکی کیښوداود لته یی لومړنی دایمی استوګنځی جوړ کړل اوپه مسلکی کرنه بوخت شو ل ، مګر دتاریخی قراینو څخه داخبره‌جوته ده‌چې دغه سیمه دنورو پوو نده اریایی قبایلو معبـــر او لار وه‌او دمنځنی اسیا څخه وروسته هم د یر قبایل داموسیند څخه را اوښتی‌دی اوددغو دیشینو قبایلو سره یی جګړی او شخړی‌راغلی دی . داسـی‌ښکاری چې دوی ددغه مرکز پـه پر یښود لو مجبور شــوی او دبلـخ دسیند غاړو تـه کوچیدلـی دی یا

---

(۱) دافغانستان پخوانی تاریخ.

(۲) دافغانستان پخوانی تاریخ --

داسی احتمال هم‌شته چې ددغه ځای‌او بلخ‌مدنیتونه سره‌همزولی‌اوهمغاړی دی اوهرځای لومړی دخپلوو ومرکزونو څخه اداره کیدل ، مگر وروسته چې دبزگر واو پوونده قبایلو ترمنځ‌دبیلتون‌ډیری‌پیړی تیری‌شوی‌دی‌ددغو دووشغلونو دخاوندا نو ترمنځ‌جگړی‌اولانجی پیښی شوی دی اودیشین و اړه حکومتونه ددوی ددفاع له امله‌په اتحاد او دیوگډلوی قوت په جوړ ولو مجبور شوی دی .

په هر صورت په ویدی زمانه‌کی که داموسیند نه‌پورې غاړه‌ساك ، دیر بیکان اوداسی نور قبایل‌پوونده‌وو په څنگ کی‌یی دخوارزم په سیمه کی دکروند وله پاره داوبه خوړډیرپراخ او پخپل عصرکی پر مختللـی سیستم موجود و . داموسیند جنوبی‌خواته هم همدا حال و ، که له یوې خوایو شمیر زیات قبایل پوونده وو، نوله بلی خوا په‌لرغونی باختـــر ( کندز ، بغلان ، سمنگان ، بلخ ،شبرغان) اراکو زیا ، دکابل په حوزه هرات ، سیستان او دکندهار دوادی‌په امتدادکی دکروندې مدنیت پـر مختگ کاوه اومحلی دیشین حکومتونه اودولتونه جوړشوی اوجوړ یدل.

اریایی پوونده قبایل دطبیعی‌لاروڅخه دخوړ ونو اوسیند ونوپه غاړ واو دورشو گانوپه امتداد هرې خواته پرله پسی لیږ دیدل اونویو نو یو ځایو نو ته رسیدل .

داخلك یوځل اوپه یووخت روان‌شوی نه دی ، بلکې دسوونو کلونو په‌موده کی په متناوب ډول خپاره‌شوی ، دوی به دموسم په تغیر سره بیرته خپلو لومړنیو تاټو بوته راگرزیدل اوبیا به‌دموسم په تغیر سره دخپلو مالونو دښی روزنی په خاطر بیرته تلل . دهمدې تگ اوراتگ په پیرپیوکی به‌ځینی خلك دپوونده توب‌نه پاتی شول اوددیشینی ژوند به یی غوره‌کړ اودزمانی په تیریدوسره‌بـه ځای پر ځای دیو دایمی کروند گرژوند خاوندان شول .

**۱ ـدهند خواته داریایی قبایلومهاجرت :**

که څه هم داخبره‌ډیره گرانه ده‌چې‌په یقینی ډول سره دباختر څخه دار یایی قبایلو یالومړی قبیلی دمهاجرت‌نیټه وټاکل شی ، ځکه چی پوونده قبایل اکثراً په لیږ داوکوچ کی‌وی،نوپوونده قبایـل باختر ته درار سیدو سره سم په‌کوچ اومهاجرت کی وږاوړ یو ځای تمیدل، ددوی دمالداری په زیان تمامیده . مگر بیاهم دوی‌دباختر اوهندوکش دغرو په لمنوکی دځو سووکلو نو په موده‌کی خپاره‌شول اودنفوسو او مالونو دډیرښت د فشارله امله هری خواته ولیږ دیدل‌مونږ هغه قبایل په دی‌حساب کی نه

راولو چې دلرغونی اریانا یاد اوسنی‌افغانستان په داخلی سیمه کی پاتی شول یوازی همدومره یادونه یی کووچې دکومولارو څخه دباختر نه ولیږ دیدل موږ هغه قبایل مهاجربو لوچې‌داریانا دپولو څخه دختیځ او لو ید یځ په لور دباندې ووتل اوهلته یی‌نوې او قوی مدنیتو نه تشکیل کړل.

دباختر څخه ددې قبایلو دمهاجرت‌نیټه دمیلادنه مخکی (۲۰۰۰) کلونو په‌شا اوخواکی اټکلیږی اودهند په‌لور دنورو قبایلو دمهاجرتو نو پــه نسبت مخکی رسیدلی دی .

دمور خینو داټکل لــه مخی دوی‌په (۱٦۰۰ قــم) په شاوخوا کی داندوس دسیند په غاړو میشته شوی‌وو او دپخوانیو مدنیتو دتماس په‌اثر یی‌هلته دیوځلاند مدنیت بنسټ‌کیښود(۱)

دهند په‌لور اریایی قبایل دباختر دشرق اوجنوب اوجنوب غرب په‌لارو ، درو او خوړونو په‌غاړ وکرار کرارلیږدیدلی دی . دکابل (کوبها) کرو مــو (کرمــی) ګومل (ګوماتی) راسا(کونړسیند) سوتی (سوات) ارغنداب (سراسواتی) هتومنت (هیلمنــد) دسیند ونو په لار واو درو روان شوی او په‌دغه هره دره‌کی یی سوونــه‌کلونه تیرکړی او تدریجاً یی خپلی ورشوګانی پراخه کړی اوودانی یی‌په‌کی جوړې کړی دی.

دوی لـــــه یــــوی خوا په هغه‌اندازه ورشو ګانو ، کښیو اوسیمو ته اړتیالرله چې دوی ته یی‌کفایت‌کاوه اودخپلو نفوسو اومالونو په‌تنا سب یی نوې ځایونه اوسیمی نیولی‌نود دوی په لیږدکی هیڅ رازبیړی‌ته ضرورت نه و، له بلی خوا دوی‌په‌دې نه‌پوهیدل چې کوم ځای ته به‌ور سیږی ! مګرنوې ورشوګانی او استوګنځی یی لټول لــه بلی خواد دوی پخپلو منځوکی هم یولړ قبیلوی اختلافات راتلل چې اکثره به دځمکو او ورشوګانو په تصاحب پیښیدل چــی‌دې کارهم دوی ډیر ځنډول .

دریم داچې ددوی دخپل منځ نه‌پرته په دغو سیموکی یولړ نور قبا یل هم اباد ووچې ددوی نه مخکی‌دغو سیموته راغلی اومیشته وو چې په‌تاریخ کی دړراویډ یانوپه نامــه‌بلل شوی دی . ددغوبومی اوسیدو نکو سره ددوی ډیر اختلافات اوجنګونه پیښیدل اویوتربله یی سره په بده سترګه کتل .

که څه‌هم موږ دلته دباختر څخه‌داریایی قبایلو مهاجرت بیانو و، مګر دا یادونه ضروری ګڼوچې وخت په‌وخت نور پوونده قبایل هم دمنځنی

---

(۱) نګاهی بتاریخ جهان ، جواهرلال‌نهرو.

اسیا ځخه داموسیند جنوب ته دمهاجرومهاجرو په بنه راتلل اوتلل اوکلـه په دخپلو ګاونډ یوقبایلو دفشار په اثردی خوا ته په مهاجرت مجبوریدل چې ددی مهاجرو قبایلو راتګ وروسته دباختری دولت او مدنیت له پاره یو لری سرخوږی جوړه کړه دباختر حکومت هم ددوی د مخنیوی له پاره تدا فعی استحکامات جوړ کړل اودهغو له جملی ځنه دډیرو زړو ودانیو پاتی شونی اثار اوس هم پاتی دی چې اغلب احتمال لری چې دکندوز کلمه هـم اصلا کیان دیس یاکیان دژوی چـې دباختر دکیانی کورنی دحکومت پـه وخت کی یوه پخه چونی او بالاحصارو. (۱)

اوس خپلی اصلی موضوع ته راڅواودهند خواته داریایی قبایلو مهاجرت په لنډه توګه څیړو .

په ویدی سرودونوکی یولړ داسی اساطیری نومونه راغلی دی چې دمر کزی او غربی اریایانو له پاره هـم مشخص اومقدس وو اوځینی واقعات یاد شوی دی چې دتولو له پاره هغه وخت ګډافتخارات وو لکه دیما (جمشید) نوم چی هم په مرکزې اوغربی اوهم په شرقی اوجنوب شرقی اریایانو کی دتقدس مقام لری اوپه ویدی سرودونوکی داسې عبارات راغلی چې هلته یماد مړیورب النوع اوداخروې جهان شفیع اومخور بلل شوی دی .یما په اوستاکی هم دډیربنکلی او دمرکزې مدنیت لومړی موسس اوحتمی دښاری ژوند بنسټ ایښود ونکی بلل شوی دی . دبلهیکا ، بلخیکا بلخ اوبلخیان کلمی په ویدی سرودونو کی ځای پرځای یادې شوې دې . اوحتی یوشمیر خلك دبلخیانو یعنی دبلخ نه راغلوخلکو په نامه بلل شوی دی .

ددې له پاره چې دشرقی اریایی قبیلو موضوع په اجمالی توګه وڅیړ و ، نواریایی قبایل ختیځ ته دمهاجرت دتقدم اوتاخرله مخی په دریو برخوو یشو .

۱ـ دبهاراته ګروپ :پخپله بهاراته قبیله چې هم پخپله دنفوسو دډ یروالی له کبله ډیره قوی وه او هم دمتحد ینو قبایلو په موجودیت سره ډیره پیاوړې وه اولومړی قبیله وه چې داریانا دسرحد ونو ځخه اوښتی اوداندوس (سند) دواړ وغاړوته ورسیده او دویدې سرودونو وروستی اکثره برخی په همدی قبیلی پورې اړه لری .دې قبیلی دهنددهغه وخت اکثره شمال اوشمال مغربی برخی ونیولی اودهغه ځای دبومی اوسیدو نکوسره یی څوسوه کلنی پرله پسی جګړی اوشخړی هم راغلی دی . همد

---

۱ـ امکان لری دکندوز کلمه (کند+یز) وی چـې (کند) دښار په معنا ساکی کلمه ده اودیزـ دیس =سیمه ده

غه قبیله وه چې لوړ اجتماعی تشکیلات اواقتصادی پرمختګو نه یی په برخه شول اودباختر ددولت نه وروستــه لومړنی قبیله وه چې دنورو قبایلو په نسبت په کې دمخه اجتماعی طبقات‌اوتضاد ونه دوڅاره شول اودزمانی په تیریدو ســره مختلف طبقات اوکاستونه په کی تشکیل شول .ددې قبیلی سره د«سرنجیانأ »قبیله هــم‌ملګری او متحده وه .

۲ـ یادو ګروپ :په دې ګروپ کــی‌پنځه قبیلی شاملی اوسره متحدی‌وی چې نومونه یی دادی : یادو ـ توروواشا ـ درهیو ـ انــو ـاوپورو ـ دا پنځه واړه قبیلی دپنګه جانا یعنــی‌پنځوقبیلوپه نامه‌هم شهرت‌لری.(۱) ددې ګروپ اودبهاراته ګروپ ترمنځ‌کله ناکله جګړې اواختلافات هم‌پیښې شوی دی .دې ګروپ دبهاراته ګروپ‌نه وروسته دباختر دورشوګانو څخه مهاجرت کړی دی .همداعلت دی‌چی دبهاراته قبیلی په ځینو سرودونوکی دغه‌ګروپ غندل شوی اودوی یی‌دبی‌دین په نامه هم یادکړی دی .

۳ـ دپکتها یاپښتنا ګروپ : په‌دې‌ګروپ کی هم پنځه قبیلی شاملی‌دی ۱ـ پکتها ۲ـشیوا ۳ـ بهالانا ٤ـالینا ٥ـویشانن (۲)

په ویدی سرودونو کی ددغــواکثرو قبایلو یادونه شوې ده اویا دوګروپ دنویو راغلو په نامه یادشوی دی اوداسی ښکاری چی حتمأ وروسته ورغلی دی . مګر دپکتهاګروپ قبایل دومره وړاندې لاړنه شول او زیا تره یی داریانا دننه اومنتهاداریانا سرحد ونوته ورسیدل او په دغو سیموکی خپاره شول .

زما پــه شخصی عقیده د«شیوا»قبیله دساك قبیله ده‌چې دتاریخ‌په اوږ دوکی دغه دوه قبیلی سره تل‌یو ځای متحدې اویو ځای‌راغلی دی‌له بلی خواد اوسینو نویو نظریا توله‌مخی چې دژبپو هنی اوتاریخ په قوا عدوبنادی داسی ښکارې چې ددغــودواړ وقبایلو ژبــه یوه وه . اوس هم چیری چی ساك دی‌ژبه یی پښتوده اودګومان له مخی داسی اټکل کیږ ي چی دغه قبایل ترډیرو وختو نــوپوری پوونده وواویوتربله سره په تماس کی وو. که ځینو لیکنو تــه‌اعتبار ورکړ و، نوساك قبایل هم د پښتنو غوندی خپاره وو اوپه ویدی‌سروونو اویا دنور وجغرافیه اوتاریخ لیکونکو په اسناد وکی دپکتها قبیلی‌ذکر راغلی دی ، یوازې‌د یوی‌برخی ذکر یی راغلی او په ټولو پښتنو نه‌اطلاق کیږی داداجتماعی څیړنوله‌مخی هم سمه ښکاری چې پوونده‌قبایل تل‌سره په‌یو ځای کی نه وی ، بلکې

---

(۱) پښتانه دتاریخ په رڼا کــی

(۲) همدغه اثــــر

هری خوا ته خپاره واره شوی ژوندکوی .
لکه څرنګه چی په بهاراته ګروپ کی بهاراته قبیله مهمه وه‌همدا راز په یادو ګروپ کــی یادو اوتور واشاقبیلی مهمی اوستری وی . په همدې ډول په پکتها ګروپ کی د پکتها او«شیوا» قبایل ډیر مهم اوډیروو . د شیوا کلمه ښایی چی دزمانی په تیریدو سره شیواك شوی وی اودعبارتو نود او ښتون نه وروسته دشیواك‌څخه ساك جوړ شوی وی .
له بلی خوادیادو ګروپ‌اوپکتها ګروپ یو تر بله سره نسلاً نژدی(۱)اود بهاراته ګروپ څخه نسبتاً لری وو. له بله پلوه په ویدی سرودونو کی یادوګر وپ قبایل دپار سوا قبیلی سره یوځای اونژدی ښودل شوی دی ، نوله دې څخه داسی ښکاری چی پښتانــه‌هم اوساك هم دبهارتیا نوپه نسبت دپار سیا نو سره نژدی او خپلوان‌وو .(۲)
داخبره اوس دژبپو هانوله خواهم تثبیت شوی ده چی‌پښتو ژبه‌دشر قی ، یعنی هندې زړواریایی ژبوپه نسبت دغربی لرغونو اریایی ژبوسره دخپلوۍ نژدی روابط لری .
دختیځ خواته دارٍیایانو دمهاجرت‌په برخه کی غوره منبع پخپله ویدی سرودونــه اوځینی نور خپاره واره‌منابع دی چې دویدی سرودونو پــه نسبت دومره معلومات نــــه لری . دتاریخ څیړونکو په عقیده اریایی قبایل دهند خاورېته د(۱۶۰۰ق‌ــم)په شاوو خواکی رسیدلی دی ، څــر نګه چې اریایان زیړه ، دطبیعت دهرراز سختیو اوکړ اوونوسره روږد دی اوپه جنګ کی ماهران وو ، نوپه خپل قوم اوغیرت ډیر مغرور او اوسرکښ وو. داو ارو ځکو خاوندان چې ددوی په نسبت متمدن اوامن خوښوونکی خلك وو ددوی دیر غلو نواو مخامخ کیدو قدرت یی نه درلود ، په‌ورو ورویی ځایونه دوی ته‌خوښی کول اواریایان یی‌پر ځای میشته کیدل . په اریایی ویدی سرودونو کی‌ددغو شخړ واو جنګو نو ډیــر مظاهر او اسناد موجود دی‌چې‌دهغو مخالفو بومی خلکو ډیرلوی عظمت ، قدرت او تمدن ترې څرګند یږې .
په ځینو سرودونو کی ددوی دخطاالسیر ښه څرك اواسناد موجود دی لکه چې‌په یوسرودکی چې دوی سندهو (اندوس) ته خطاب کوی‌داســی

---

(۱) په‌هغه جګړه کی چی‌دلسو ملکانو په جګړه مشهوره وه‌دغه وروستی دوه ګروپونه چی مجموعاً لس قبیلی‌وی دبهاراته قبیلی پــه خلاف سره متحدی شوی وی .
(۲) پښتانه دتاریخ په رڼاکی ــ۱۱۹مخ

وایی :
«ای سندهو !ته لومړی خپلی څپه وهونکی اومستی اوبه دتریشتاما ،را سا ، سوتی اودکوبها » دسیندونـوســره ګډوی او بیـا پخپلـه عراده «ګومانـی» او«کرومو» راکاږی (۱)یالکه دغــه بل سرود چی «ماروت» د بادرب النوع ته په خطاب کی ویل‌شوی دی «ایماروته !له اسمان یاد هواله منځ‌یاله نژدې ځایونو څخـه راوالوزه او راشه اوله موږ څخـه ډیر زرمه ځه اسا (کونړسیند)کرومو(دکرمی سیند یادره) انی‌تابها ،کوبها (کابل سیند) مه پریږه دهچې تاوځنډوی یاد «سارایو» مست سیند ستالا ره بنده کړی ......) (۲) په ځینو ویدی سرودونوکی د«سراسو اتی» سیند یاد شوی دی او پـوهان‌عقیده لری چی‌ددغه سیند کوم‌اوصاف او ځرنګوالی چې په ویدی سرودونوکی راغلی دی هغه حتمأدهلمند مست سینددی اوڅیړونکی عقیده لری چی‌اریایان یوازی دختیځ لورتــه نه ، بلکی داریانا دجنوب لورته یی‌هـم‌مهاجرت کړی واو دهلمند اوارغنداب دمستو سیند ونو په غاړ واو کڅیوکی‌یی ځوپیړۍ تیرې کړی اودبلوچستان دهغه وخت دبومی خلکو سره دشخړ‌واولانجونه وروسته دهند خواته لیږ دیدلی ډی .

لګه ځرنګه چې دمخه وویل شول‌چې دمهاجرتو نو نیټه مود(۲۰۰۰ق‌م) څخه پیل شوی وګڼله اوهند ته موددوی رسیدل د(۱۶۰۰ قــم) په‌حد و دودو کی وټاکه نوطبعأ (۴۰۰) کاله‌دوی دافغانستان په غرو ، کڅیو ور شوګانو درواو دخوړ ونوپه غاړو تیرکړل چې یو شمیریی همدلته ځای پر ځای میشته شول اواوس هم اوسیږی‌مګر یو شمیریی داریانا دحدودوڅخه واوښتل اودهند په‌هوا رومیدانوکی‌یی نفوذ وکړ اوهلته دیو ځلانــده تمدن خاوندان شول . دریګوید پــه یو سرودکی‌دبومی خلکو سره دجنګ صحنه اودهغوی قدرت داندر ارب النوع له خولی داسی تمثیلوی :

«ما ځمکه اریه ته و بخښله اوباران دهغو کسانو له پاره ورومچې ماته نذراوړی ! ....

دسوما په مستی کی مې‌د «شمبرې» Shambara
(۹۹) کوټونه وران کړل ــ سلم‌کوټ‌می هغه وخت وران کړ چې د«دیوداس

---

(۱) دافغانستان پخوانی تاریخ .
(۲) دافغانستان پخوانی تاریخ .

اتهتکوه» سره‌می‌مرسته کوله ....»(۱)
دیو داس دبهاراته قبیلی مشرو اودسو داس دکورنی څخه و . سوداس دبهاراته قبیلی هغه مشرؤ چې دده‌دپلویانو اومخالفانو تر منځ د«راوی» سیند په غاړه یومشهور جنگ پیښ‌شوی اوداجنگ پخپلـه داریایی قبایلو په‌منځ کی ډیرلوی اومهم جنگ‌دی چې دلسوملکانو په جنگ شهرت لری . په ویدی سرودونوکی ددغی‌جگړې علت اوشامل‌اړخونه یاد شوی دی .موږدلته دپیښی دعلت څخه تیریږ واوزموږ له‌پاره اهمیت نه‌لری ، مگر دهغو قبایلو دنومو سره علاقه لروچې په‌دغه سرودونوکی یادشوی دی ، ځکه چې‌دغه قبایل اوس هـم‌زموږ په‌گران هیوادکی شته اوزموږ داجتماعی تاریخ‌له پاره‌ډیراهمیت لرې.

ددې قبایلو دتشخیص په برخه کی‌داخلی او خارجی څیړونکو یـو څـه تحقیقونه کړی دی ، مگر بیاهم پـه‌یقینی توگه دغه نومو نه اوځایونه یی پوره تثبیت شوی نه دی‌او دلته‌یی دنوموړ فقه اللغت څخه تیریږو ، خود غومره وایو چې:

داقبایل دباختر څخـه دشرق ،جنوب غرب او جنوب شرق خواته په بیلو وختو نوکی روان شول اودکـرنی چارې‌یی په هـدې‌ملك کی دپوره نده توب‌په څنگ کی پرمخ بوتلـی‌اوپوره مهارت یی په‌کی پیدا کړ .

په دغه قبایلو گی داریانا پـه‌حدودوکی دننه اجتماعی طبقات پیدا شوی نه وو ، مگر کله چی دهنـدخاورې ته ورسیدل اودهغه ځای د بومی خلکو سره دډیرو جنگونو څخه وروسته دپراخو ځمکو خاوندان شول او اجتماعی مختلف طبقات په‌کی پیداشول چې پوهانو دغه اجتماعی طبقی څلور گڼلی دی :

۱ـ روحانیون یاریشیان
۲تور کښان ، یااشراف‌حاکم‌طبقات
۳ویشیا یادکسب اوحرفی خاوندان
٤ ښیته یا شوډ ره طبقه .

## ۱ـ دروحانیونو وظیفی :

که چیری ویدې سرودونه په غوروکتل شی ، نو اکثره یی‌په قربانۍ دك دی اوهر څوك دخپلی یوې‌هیلی‌او ارزود سرته رسو لوله پاره‌مجبور ؤ چې‌دخپل توان سـره سـم قربانی‌ورکړی . فردی‌اوهم اجتماعی قبیلوی

---

(۱) گزیده سرودهای ریگویدا (۹)مخ

قربانی موجودې وی . داقربانی به دیو خوړ یاسیند په غاړه دروحانیو نو په ورسطه اولاربنوونه اجرا کیدل. دسوما شراب به‌هم روحانیو نو تر تیبول اوویشل . داور بلول په‌هره‌قربانی کی حتمی وو، ځکه چې دوی فکر کاوه اگنی رب‌النوع (داورخدای)چې دنورو معبودا نواو انسانانو تـر منځ واسطه ده دغه قربانی نور ومعبود انوته رسوی اوهغوی خوشحا لیږې اودهیله من یاارزو منوهیلی‌سرته رسیږی . لـه بلی خوا ویدی سرودونه چی د روحانیو نولـه خواویل شوی دی‌په ندراو قربانی ډیرتا کید او ټینگار کوی اوپه دی کار کی‌ددوی مادی اومعنوی ډیـر فواید او گټی وی . دزمانی په تـیر یدو اوداجتماعی او اقتصادی حالاتو په پـر مختگ سره ددغو روحانی ډلو ځخـه یوقشر اوطبقه جوړه شوه.روحانیون دهغه وخت دټولنی په ټولو چا روکه‌بنادی به وه‌اوکـه ویر بیخی شا مل او مسلط وواوټولی چاری ددوی‌په لاربنودنه اومشوره کیدلی ، تر دی‌پورې چی‌دوی‌به دراجاگا نواو امیرانو دمشاورینو حیثیت‌هم‌دراوداودروحا نی چارونه پرته یی په سیاسی چاروکی هم کار درلود .

په پای کی دوی دپراخ اوعظیم قدرت او ثروت خاوندان شـول . در یگوید په ځینو سرودونو کی داسی‌یالکه دغه بل سرود چی د «ماروت» عبارات‌هم شته چی‌دوی دځانو نوله‌پاره ثروت ، دامیرانو له‌پاره شهرت او جلال اودعواموله پاره‌روزی غواړې. روحانیو نو پخپله بی دمذهبی چار و ځخه بل کار او کسب نه درلود اوداشرافو اونجباؤ په ځنگ کی یی‌په بیغمه دټولنی دغوره تولید اتو ځخه استفاده کوله . په ډیرو ویدی سرو دونوکی دغنیمت اودو لجی د مالونوپه برخه کی ډیری یادونی شوی‌دی او داسی ترې ځرگند یږی چې‌ریشیانوبه اشراف تلد جنگ له‌پاره تحر یکول او لمسول او دارباب الانواعوځخه به یی دوی ته مرسته اوتعاون غوښته . کله به چی دوی دښمن‌مات کړ ، نود غنیمت اودو لجی مالونه به یوازې دروحانیـو نو اواشرافو تـرمنځـه ویشل کیدل ، دداسی ډیرو امتیاز ونوله کبله له دوی نه هم‌داشرفو تر ځنگ دټولنی یو بډای او شته من قشر جوړ شو .

## ۲ـاشراف یاامیره طبقه :

دغه یوه سیاسی طبقه وه چې دغه‌وخت په دوی کی هغه پخوانی دیمو کراسی چې هرچابه خپل کار پخپله‌کاوه او رئیس یامشر بـه‌دقبیلی یا قوم دافرادو په واسطه مستقیم یادلو یو جرگو دغړو په واسطه ټاکل کیده له منځه تللی وه ، ځکه دوی‌دقبیلوی ژوند ځخه ښاری اودپوونده

توب له حالت څخه دګنې اومتمدنې ټولنې دتشکیل حالت ته ترقي کړې وه. او لسې قدرت لکه دپخوا غوندې په اولس کې خپور نه و ، بلکې تمرکزيې پیدا کړې ؤ اودعوامو څخه خواصوته منتقل شوې ؤ . اجتماعي تشکیلاتو داقتصادي پر مختګ په اثر ورځ په ورځ وده موند له او اشراف په ارثي توګه دټولنې نــه لوړاو اوچت مقام ته رسیدل ، تردې پورې چې ځینـو شاهي کورنیو دروحانیو نوپه مرسته داسې اساطیر دځانونو له پاره جوړ کړل چې دشاهي کورنې دنسب شجره به ددوی ارباب الانواعو تــه رسید له .امیرانو او اشرافو ددیموکراتیک او مشروط مشر توب نــه دمطلقیت او دیکتاتوری مقام ونیو او دعوامو هرڅه دخواصو لــه پاره قربان او ځار شول . دې طبقې هم دکار او کسب سره کومه علاقه نه درلوده ، بلکې دژوند انه چاروته لاس وروړل یې دځانونو لپاره شرم او عار ګانــه .د دې دواړو طبقو ټولی چارې به ورته مریانو او وینځو سرته رسولې اودمر یانو قشرخپله ټوله خپلواکي او ازادي له لاسه ورکړې وه .

**۳ـ دکسب اوهنر خاوندان :**

دخلك هغه صنعتګران ووچې خپلې ټولنې تــه یې راز راز لاسي وسایل لکه دکرونډې سامان ، داغوستلو له پاره رختونه ، فلزي الات ، دترکاڼې محصولات اودهغې ټولنې ټول مایحتاج افزار او اسبابونه جوړول .

داخبره باید هیره نه شي چې اریایي قبایلو تردغه وخته پورې پومبه نه پیژند له او داغوستلو له پاره یې دحیواني محصولاتو ، یعنې وړیو او پــو ستکو څخه کار اخیست پومبــه دهندد پخواني تمدن په مراکز ولکه هرپه او موهنجو دیروکې ډیر پخوا پیژندل شوې وه اود استفادې تاریخ یې دځینو پوهانو داټکل پر خلاف دمصر څخه ډیر پخواني دی . اریایي قبایلو هم دپومبې سره دبلدیت پــه مرسته داغوستلواونساجي پرمحصولا توکــې ډیرپر مختګ وکړ اوراز رازنخی ټوکران یــې جوړ کړای شول . په لومړ نیو ویدی سرودونو کــې دنخی ټوکرانو هیڅ یادونه نشته او دوړینو ټــو کرانو یادونه کوی اودسوماد شرابو په تصفیه اوڅبیبنلوکی دوړینو شمکلیو «دغوړیود چنولو له پاره کوچنی ټوکر»او صافیو یادونه کوی اوروحانیو نو به هم دسوما شرابو دجوړولو او تصفیه کولو په مرا سمو کی دغواګانو پوستکی اغوستل.

داهم باید له یادونه باسو چې دغوایا نود وژلو دتحریم مسئله یوه اجتماعي او اقتصادي پیښــه وه اوعلت یې داوچې کرونډې دپرمختګ په

اثر غوایانو ته ډیر ضرورت واوغوایان دیوی او زراعتی چاروله پاره‌یوه محرکه قوه وپیژندل شوه او ددې‌اقتصادی عامل داغیزی له کبله دقر بانی په مراسمو کی‌هم تحول پیداشو.

دشپنه توب اوپوونده ګری په‌عصرکی دغوایانو قربانی نه‌یوازی‌دا چې منع نه‌وه ، بلکی دارباب الانواعودخوشحالی له پاره یوه‌مهمه ذریعه وه او دوی به‌دخپلو فتوحاتو اوبریالیتوبونونه وروسته هغه مالونه‌او غوایان په‌خاصو مراسمو قربانی‌کول‌چی دمقابل لوری نه‌به یی‌راوستلی وو او غواګانی به‌یی‌داجتماعی مراتبوپه سویه سره ویشلی کسب ګری طبقی هم‌دومره اهمیت نه‌درلود ،مګرداچې یوه ضروری ډله وه‌بیا هم‌ور ته دومره په سبکه سترګه نه کتل‌کیدل .

## ۲ــ شوډرا ــ یاسوډ ره ډله :

دا طبقه دټولو طبقاتو څخه خواره‌اوبیوزله اوهغه بومی خلك وو چې‌دفا تحواریایانو له خوا نیول شوی اوټولنه یی دارییایانو سره په جګړوکی شیندل شوی اودماتی‌سره‌مخامخ‌شوی‌ددوی ځمکی اوجایدا دونه یی ور څخه ونیول او ددوی‌څخه یی‌دیونا، نی ټولنی په څیر دمریانو او وینځو کار اخیست او داکار حتمی دی درجی‌ته ورسید چی کله نا کله به دیورا جا په مرګ سره مریونه‌او وینځی هم دده دنورو مالونو په څیر ورسره یوځای وژل کیدل . ددی طبقی څخه که څه هم‌ددې اریایی ټولنی ټول ثقیل اودرانه کارونه دوی اجرأ کول ، بیاهم کرکه کیدله اوتماس او نژدیکت ورسره اکیدأ منع وؤ. دغه تاثیرات دهند په‌ټولنه کی‌د (۱۹٤٥)ع کال پوري پخپل شدت‌او قوت پاتی وو ، مګر مهاتما ګاندی دغه بندرمات کړ اوټول یی یوشان‌ور ونه وبلل ده به پخپله هم‌ددوی سره‌یوځای ګوزاره کوله او ورسره‌دمینی او الفت اظهار به یی کاوه .

### دغرب خواته مهاجرت

که څه هم ځینی پوهان دغرب خواته دارییایی قبایلو دمهاجرت په لړ کی یوازی «ماد» او «پارسوا» قبایل‌دمخه یادوی ، مګرخبره داسی نه‌ده

، بلکې یو لږ نور قبایل چې حتی ددې قبایلو نه قوی اوزور ور وو امکان لری چې دغه دوه قبایل دهغوی دفشار له کبله دلرغونی پارس یا اوسنی ایر ان ته په کوچ او کډه کولو مجبور شوی وی . دغه قبایل دتمدن او کلتور له مخې دباختری ، ماداو پارسوا اوختیځ اریایی ګروپ په نسبت وروسته پاتی وو ، مګر دبشری قوت له مخی ددغو تولو قبایلو څخه کم او وروسته نه وو ، بلکې په تاریخ کې یې ځای پرځای داسې پیښې منځ ته راوستی دی چې ددغو قبایلو سره داختلافی مسایلو په ترڅ کې دمخامخ کیدو په اثر یې دغه نور متمدن قبایل مات کړی او حتی ایل کړی هم دی ، مګر څرنګه چې دوی تردیره وخته پورې پوونده وواو مرکزی دیشین اجتماعی تشکیلات او منظم کلتوریې نه درلود ، نوددوی خپل لیکلی اثار یا هیڅ پاتې نه دی یا هغه څه چې پاتې شوی دی دنشت سره برابر دی . نورو ګاونډ یو قبا یلو په خپلو اثاروکې ډیر غندلی دی او حسودانه عبارات یې دشدید مخا لفت څرګندوی دی دغه قبایل اکثره دپارتیانا او ماورأ النهر خلك او او سید ونکی دی چې د تاریخ په اوږدوکې هری خوا ته خوزیدلی دی .

دتاریخی اسناد وڅخه چې ډیر کړ کیچن او الول دی داسی څرګندیږی چې هیڅ قبیلی کوم مستقیم خط تعقیب کړی نه دی اودزمانی دغورځو پرځو په دوران کې یې مختلف حالات او پیښې لیدلی دی او یوه قبیله کله څوځایه شوی او په بیلو جهتونو تللی ده .البته دابیلتون ددوی دیو اقتصادی حیاتی او اجتماعی ضرورت له مخې شوی چې اوس یې موږ کټ مټ نه شو تصویرولای .کله یوه قبیله دبلـې قبیلی دفشار په اثر دیو ځای پرینښو دلو ته اړشوی او یایو وړوکی مدنیت دنورو قبایلو له لاسه تالا ترغی شوی او ځای یې نورو قبایلو نیولی دی . کله یوه قبیله دبلی له خوا مغلو بـــه شوی لیدل کیږي مـــګر بیاڅه موده وروسته ورڅخه یوه حاکمه او مقتدره قبیله جوړه شوې وی .

لکه څنګه چې دباختر څخه دختیځ او جنوب خواته اریایی قبایلو پـــه مهاجرت پیل وکړ په همدې ډول یې غرب ، شمال اوشمال غرب او جنوب غرب خواوته په مهاجرتو نو پیل وکړاو پوونده قبایل ورځ په ورځ له خپل اصلی اولرغونی ټاټوبی (باختر) څخه کوچیدل . ترکومه ځایه پورې چې تاریخی اسناد زموږ سره مرسته کوی دغرب خواته د«ماد» او«پارسوا» قبا یل شهرت لری اود باختر څخه لوړی دجنوب ، جنوب غرب او بیا دغرب په لور لاړل . داقبایل هغه وخت چې دمرکزی اریایانو له خواپه بلخ کې دتمدن او کلتور یو پراخ او منظم مرکز جوړ شوی ؤ لاپوونده اومهاجروو اوکوچی

ژوندیی درلود چې دهمدی کو چونو په لړکی لوړی دجنوب غرب خواته لاړل اودپارو پامیزاددغرونو په لمنواوکڅیوکی خپاره‌شول اودسوونو کلو نو په موده‌کی یی دمالداری په څنګ‌کی ابتدایی کرونده هم زده‌کړه .دې قبایلو هم دشرقی اریایانو په څیـردسیند ونو اوخوړ ونو غاړی‌او طبیعی معبرونه تعقیب کړل . داریانا جنوب‌ته ،یعنی دهیلمنداوارغنداب دسیمو نه ورروسته دفراه‌رود ، خاشرود اوهریرود له لارې دلوط ددښتی دطی کولونه ورروسته داوسنی ایران مرکز اوشا اوخوا سیموته ورسیدل .

داامکان ډیر موجود دی چې دغه قبایل د«اوسیتی =ساکو» ، پهلوا ، پښتنو ، پارتیانو اوارمنی قبایلو دفشار له‌لاسه تدریجاً داریانا څخه په وتلو او کډه کولو مجبور شوی وی، ځکه هغه وخت چې دوی پارس ته رسیږې ددوی اودباختر ددولت ترمنځ دغه سیمی اوورشوګانی دپاسنیو ذکر شویو قبایلو په‌لاس کی وی اوځای پرځای یی جلامد نیتونه تشکیل کړی ووچې کله ناکله به‌د باختـرلرغونی مدنیت ورڅخه په تنګ ؤ ، داړی اوير غلونـه به یی ورباندې‌کول . ددغو قبایلو دحملو څخه داسی څرګند یږې چې ددوی څخه یومقتدرقوت جوړشوی واو دقدرت له مخی یی دباختر دولت سره سیالی اورقابت کاوه .

له بله پلوه که چیری ایران ته‌دماداو پارسو اقبایلو دورتګ نه د مخه دځینوهغو قبایلو نومونو وګوروچې دهمدې‌قبایلو دفشارپه اثردځمکی پرینښود لو اوورروسته ددوی ددولت‌دتشکیل په وخت کی اطاعت اوغاړه کینښود لوته مجبورې شوی‌دی ، نویوه قبیله د«کاسیانو»په نامه مشهور ه وه اودغه قبیله اکثر تاریخ پوهان‌اریایی بلکې پښتنو سره نسلا مشتر که قبیلـه بولی .نو که چیری دااحتمال درست وی نود دغو قبایلو نه پخوا دهندې قبایلو سره همزولی اریایی قبایل داوسنی ایران خاورې‌ته رسیـدلی وو او ماد اوپارسوا ددویم‌مهاجرت خلك‌دی . ددغو قبایلو پـه ورتګ سره دنورو قبایلو اثرات بیادتاریخ په‌پاڼوکی ورك شوی اوله منځه تللی دی .

مادا وپارسوا قبایل هغه وخت چـی‌داوسنی ایران‌خاورې‌ته ورسیدل‌ډیر ضعیف اوډیره موده دآشوریانو (داوسنی عراقی سامی نسله خلك‌وو ) تر فشار او اثر لاندې وو .

پوهان ایران ته دماد اوپارسواقبایلو نیتـه د(۱۳۰۰ ق‌ـم) وخت ښیی چې هغـه وخت دوی دپووندەوپه بڼه هلته رسیدلی وو اومالونه یی‌درلودل . که څـه هم اریایانو دهغه وخت‌په تاریخ کی هیڅ غیر ار

یایی قوم ته ایل‌شوی نه‌دی اوکــه‌چیری وربانديې دبل‌قوم له خوا فشار راغلی دی‌نوفوراً یی‌هغه ځای‌پرینښی‌اوبلی خواته تللی دی ،مګردا دوه لومړی اریایی قبیلی دی چې دپردیواطاعت ته‌غاړه نږدی‌اودآشو ریانوظلم اوتیری تــه سرونه ټیټوی . امکان‌لری چې ددوی دبیرته راتګ مخــه هغونورو اریایی قبایلو نیولی وه‌چې‌دهغودلاسه داریانا دخاورې په پر ینښود لومجبور شوی وو اوددغومقتدرو قبایلو دموجودیت له امله به بیر ته دختیځ لورته راتلای نه شول .

ددی سره آشوری نسل دومره ګډشو او اغیزه یی وربانديې وکړه چې حتی ډیرو مورخینو یوقوم اونژاد هم‌بللی دی . دهغوی کلتور اوژبه او حتی نسل سوچه پاتی نه شول اوتراوسه پورې هم‌ددوی اودسامی‌قبایلو یوپه‌بل باندی متقابل اثرات څرګندددی اوبیلګــی یی موندلی کیږې .

* لومړی قبیله ې ځان‌یی داشوریانودمتابعت څخه خلاص کړاو خپلواکی یی واخسته مادی قبیله وه‌او پارسواقبیله یی هم حاکمیت ټینګ کـړ .د (۲۰۰)کالونه وروسته پارسوا قبیله مبتلی شوه اودقدرت واګی یی‌پــه لاس‌کی ونیولی . موږ دلته‌ددې نه‌زیات دغه مهاجر قبایل نه څیړو او خپل اصلی مقصد ، یعنی دمرکزی یابلخی اریایانو په څیړنه پیل کوو :

## مرکزی یاباختری اریایان

داکثرو غربی او ایرانی مورخینوپه منځ‌کی دغه‌دودبیخی‌رواج موندلی دی چې دنړی داریایی توکم دڅیړنی‌په پیل‌کی خبره‌د «مادی»او «پارسی» قبایلو څخه پیل کوی اواکثره پخوانی کتابونه ددغه توکم مسقط الرأس په غلط ډول دخپل اصلی ټاټوبی څخه ډیر لیری‌داسی‌ځای کی‌لټوی‌چی هلته ددغه توکم‌اثار دمیلادڅخه دیوزرکلونود شااو خوا څخه مخکی هیڅ‌نه موندل کیږی . کله چې داخبره ددوی پــه ذهن کی ومنل شوه چې داریایی تو کم لومړی ټاټوبی داوسنی ایران خاوره وبولی ، بیا دهغو ټولو ځمکنیو اسماو دجغرافیایی موقعیت دتعین‌په برخه کی دیولړ پراخو ستونزو او مشکلاتو سره مخامخ شی او ددغــوسیمو دټاکلو له‌پاره به‌دومره لیری فرضیی اوقیاسو نه په کاراچوی چې‌هیڅ راز منطقی تسلسل اواجتماعی پیوند به‌نه لری .

زما په‌عقیده داټولی ستونزی‌دوی‌ته دهغه لیکنو څخه راپیدا شوې‌چې دپارسواد قبیلی‌دهخامنشیانو په‌دوره‌کی‌چې هغه وخت داریایانو یوازینی قدرت ګڼل کیده ، څو یونانی لیکوالو او مورخینو دهغوی په‌برخه کی

لیکنی کړی اودهغو دربارونو عظمت‌اوجلال یی ترسیم کړی دی له بلـه پلوه دپارس اوسنی نوم چې‌ایران‌دی‌او په همدی روانه پیړۍ کی وربا ندی اینبودل شوی دی دتوکم پیژندونکو اوتاریخ پوهانو دمغالطی سبـب شوی دی او دوی ګومان کړی دی‌چې‌ګوندې دادهغی لرغونی اریانا یاارانو یچ پاتی شونی یادګاردی ، حال‌داچې‌دغه نوم دومـره سابقه نه لری او دشلمی پیړۍ مولوددی او زموږ سره‌دپخوانیو تاریخونو په بناکافی اسناد شته چی اریانا دهمدی زمـوږدخاوری‌یو لرغونی نوم ؤ .اواریانا ویجه هم زموږ په غرنیو علاقوکی‌غالبأ داوسنی‌بدخشان اودشا اوخواد کومی سیمی نوم دی . په شاهناموکې : دایران‌نه‌مقصد هماغه لرغونی اریانا ده چـې مرکزیی بلخ دی .

له بلی خوا دهخامنشیانو په هغوجعلی شجرة الانسابوکی چـې ددوی مقصد تـری دخپل نسب لوړ والی ؤاکثرویی ځانونه دهغو بلخـی شاهی کورنیو دلویو او مقتدرو شاهانـواحفاد او زوزاد بللی دی چی اساطیر یی داکثرو اریایانو که‌شرقی وو اوکه غربی ، ټولو په یادوو . اودغه وخت لیک‌او کتابت‌پوره وده‌کړی‌وه .هخامنشی امیرانو دخپل وخت دا عما لو کتیبی لیکلی دی چې دغه وخت‌دهغـی زمانی سره متصادف دی‌چې د بلخ مرکز دګاونډ یو اریایی قبایلودقدرتونو له لاسه ضعیف شوی او پخوانی قدرت ورته پاتی نه ؤ . ددغوقبایلو قدرت دومره ؤچې دهخا منشی کورنی لوی فاتح کوروش که څه هم ډیرلیری ملکونه فتح کـړل مګرپه پای کی دساکی قبایلوله‌لاسه ووژل شواو هخامنشی عسکر یی‌تالا ترغی کړل .

څرنګه چې دلرغونی باختر دلومړنی‌تمدن دبنسټ کیښودلو اوبیاو ده‌کو لو په عصر کی لیك او کتابت موجودنه ؤ او ددوی قوانین ، عقاید ، فو لکلور اودودونه په شفاهی توګـه‌ددوی ترمنځ نافذ وواوسینه په‌سینه داسلافو څخه اخلافوته منتقل کیدل‌چی ویدی سرودونه یی یوپاتی شونی یا ګاردی ، نودهغه وخت‌زموږ سره‌اوس‌کوم لیکلی اسناد اومدارك‌نشته چې دهغوپه رڼاکی دلرغونی اریایی‌تمدن په برخه کی مستقیم اکاډیمیك مطالعات اوڅیړنی وشی . موږدلتـه‌مجبور یو چې پـه‌هغو اساطیر واوا فسانو اتکاوکړو وچې‌په لرغونـو اوستایی اوویدی اثاروکی پاتی دی . دغه لیکنی که څه هم دهغه وخت‌دذهنیت سره سم افسانوی اوماورأا الطبیعی رنګ لری ، مګر بیا هم که‌چیری دیو واقعیت په سترګه ورته وکتل‌شـی نودومـره موادتـری‌د اویستل کیدای شی چې زموږ دلرغونی خاورې دمدنیت‌په خطالسیر اوانکشاف‌باندی پوره رڼا اچوی.

په ویدی سرودونوکی داسی ډیرمواد موندل کیږی چې زموږ دلرغونی خاورې دپخوانی مدنیت دبیلګو څرګندونه تری کیږی اوداسی ډیرنومونه اواعلام په کی راغلی دی چی داویستایی نومونو موجودیت او واقعیت ته قوت ورکوی . که څه‌هم په ویدی‌سرودونو کی‌لومړنیو اریایی امیرانو ته درب النوع مقام ورکړ شوی اوددمثال په توګه «یما» یا جمشید دمړیو شفیع او رب‌النوع بلل شوی دی اوهغه بڼ چې یما جوړ کړی ؤدوی دفر دوس‌او یاپه بل عبارت دوی ورته داخروې جنت په توګه قایل وو ، تر دې پورې چې ځینی مخصوص داسی‌سرودونه هم ووچې دروحانیونو په واسطه دمړی له پاسه ویل کیدل اوهغه مړی به‌یی په روحانی توګـــه «یما» او دهغه فردوس تــه ورلیږه‌مثلا دریګ ویدپه یو سرودکی داسی ویل شوی دی :

«یما» (دمړیو باچا) په یوه‌ونه کی‌چې ښایسته اوښکلی پاڼې اوښاخونه لــری دنورو خدایانو سره دسوما دشرابوپه څښلو بوخت ؤ . زما پلار داوطلب شو چی هماغلته دخپلوړنیکونو سره یو ځای شی .

ددی منظری دکتلو له کبله غمګین‌شوم او خوشحال نه شوم ، ځکه‌چې ماغوښتل چـې دده دبیادویم ځل په‌دیدار مشرف شم ......»

داسرود پســی اوږددی اوبیا دهمدی سرود پــه یو ځای کی دمړی څخه داسی پوښتنه کیږی.«ته چاپیداکړی؟داارابه چادلته راوسته ؟ایاداسی څوك شته چې‌موږته ووایی چې تادی‌سفرته څه توښه او څوری راوړی دی؟ »...په همدی‌سرودکی وروسته وایی:

«همدالوړعرش دی . د«یم» استوګنځی اودخدایانو ټاټوبی چی پخوانی ماشومان دلته راځی . دادخدا یانـوشپیلی ده‌چې غږوی‌یی اوله هری‌خوا څخه روحانی او ازونه اوریدل کیږی‌اودی سیمی‌ته خاصه ښکلا ورکوی.»

دریګویدا په یوبل سرودکی داسی ویل شوی دی :«دمړیوله اروا ګانو ، دهیواد حاکم ، هغــه چې دغښتلو اولوړ وغرونو دلړونو څخــه تیر شوی دی اوددیرو پردیسانو په‌لار اوخط السیرته یی پام دی .دویو سوت Vivasvat زوی دی.ای‌یما باچا !موږ تاته خپل نذرونه و ړاندی کوو ، زموږلارموږ ته دلومړی‌ځل له پاره یما پیداکړه . داورشوبه له موږ څخه هیڅکله وانه خیستله شی. هغه ځای چې زموږ لرغونی‌نیکو نه ورغلی دی اوهغه چې وروسته دنیاته راغلی‌دی.پخپله لارلاړل...»(۱

(۱) ګزیدۀ سرودهای‌ریګویدا (۱۹٤)مخ

دوی داسی فکرکاوه هغه روحانی‌نړی چې یماپه کی حکومت کوی پـه وره‌کی یی دوه‌سپی‌دی‌اودغه فردوس‌ته پردی خلك نه پریږدی اوخپلوان هم چې دښواعمالو خاوندان نـه وی‌اویما ورته اجازه ورنه کړی ننوتلو ته نه پریږدی .

ددغو سرودونو څخه موږته څرګندی په لاس راځی چې دهغوله مخی موږ پـه دې متیقن کوی چې یما دډیروغرونو څخه تیرشوی او دهوارو ځمکو په‌لور یی مزلونه کړی اوخلك‌یی راغونډ کړی اودلومړنی ټولنیز تشکیل نظم او اجتماعی او اقتصادی‌تحول بنسټ یی ایښی دی .

له بلی خوایو قوی احتمال موجوددی‌چې اریایانو به‌تر ډیری مودی پوری خپل مړی دیما دلاسه جوړشوی ښاراو یاپه بل عبارات دختیځ اولویدیځ دټولو اریایانو مسقط الراس‌ته‌رالیږل‌اودلته به‌یی په‌خاصو مراسمو تـد فیـن اوتجهیز کاوه . خپلو لومړنیوټاټوبی ته دمړیو لیږل اوس‌هم‌په‌افغا نی قبایلو کی رایج دی .

دریم داچې یما اکثرأ دښکلی اولویی رمی دخاوند په‌صفت ستایـل شوی دی چې داټکی تری څرګندیږی‌چې یما دهغی زمانی شخص دی چـې دټولو شپنو اوابتدایی کروند ګروباچا واودا ټول پری راغونډ اوډیره موده یی یوځای سره شپی اوورځی‌تیری کړی دی .

په ویدی سرودونو اود دختیځواریایانو په نورو لرغونو متونو اواسنا دوکی دلرغونو اریایانو دحال شرح‌اودهغو دژوندانه دکړووړ واومدنیت په باره کی دومره کافی مواد نشته‌چې دموثقو مدارکو دتسلسل‌په توګه تری کاروا‌خیستل شی اوعلت یی‌هم‌امکان لری داوی چې ددوی دمهاجرت په لړکی دداسی نویو پیښو او حالاتو اونورو غیر اریایی قومونو سره مخامخ شوی دی چې خپل زاړه اساطیریی ترزیاتی اندازې‌پوری هیر کړی دی اوپر ځای یی نوی تاریخی پیښی‌اودژوندانه نوی اسالیب راغلی دی چې دوی ورسره په ورځنی ژوندانه‌کی مخامخ او دخپلو هیلو دتسکین له پاره یی نوی معنوی اومادی‌سمبولونه وضع کړل ، مګربیاهم ځای‌پر ځای داسی مواد په کی شته چې دمرکزی اریایانو په برخه کی داویستا یی یادونو سره پوره مرسته کوی،نو موږ هـم مجبوراً دهمدغو منابعو څخه په استفادی سره دمرکزی اریایانو دپخوانیو ټولنود حالاتو په څیر

لو پیل کوو اوپه اوستایی متونو کې‌داریایانو دحال پلټنه کوو : (۱)

## پیش دادیان ـ یاپره داتان

داویستا په پشتونوکی ځای پرځای دلرغونومرکزی‌اریایانو دمشرانو اوامیرانو یادونی شته چې دهغوی‌هغه نذرونه اوقربانی یادوی چې دوی دناهید ایزت له‌پاره کړی دی‌اود هغو قربانیو په برکت دبرم او مشرۍ مقام ته رسیدلی دی . کــه څه هم دغه نومونه یوتر بله ګډوډ دی او یوازی روحانی اویو څه سیاسی امارت یې‌ښوول شوی دی چــی مذهبی رنګ لری ، موږیی قدامت‌اوپرله پسی والی‌لړی زموږ دګران‌هیو اد دهغو شاهنامو په مرسته ترتیبووچی زموږدنیکونو څخه دزړګونوکلونو را په‌دی خواسینه په‌سینه راپاتی‌شوی وواو ددی لرغونی هیواد په خاو ره‌کی دپیاوړ واوغښتلو پوهانو اوشاعرانو له خوا ثبت شوی اویادګاریی ترموږ پوری رارسیدلی دی . ددغوتړولو اثارو دمطالعی اومقایسی څخه موږ ترتړولو دهوشنګ نوم دمخه‌ګڼواوددی معلومو اسناد وپه اتکایی لومړ ی پیشدادی مشرګڼو :

### هوشنګ

دانوم په اوستا کی هیوشنګــه Hio shegah بلل شوی اود اوستا مفسرینو دښوودا نیو جوړونکی په‌م فهوم ترجمه کړی دی .په اوستــاکی اکثراً دهــوشنګ سره د(پره دات) پیشدادی نسبتی صفــت راغلی دی،مګربه بندهش‌کی هوشنګ‌داریایا نو مورث اعلی یالومړی نیکه ګڼل شوی اوداریایا نو دلومړی مورااو پلار نه چې‌دوی ورته «ماشیه»او «ماشیتوئی» ویل دده تر عصره‌پورې(۹۳)کاله زمانه اټکلوی . ماشــه او ماشویی ته داریایانو دادم اوحوا په‌څیرد لومړنی موراو پلار په بڼه قا یل دی . مګرپه ویدی سرودنو کی‌داریایانو لومړی مور او پلار «یم»او

---

(۱) که څه‌هم دلوستونکو دخبرتیاله پاره په کاروو چې اویستا اومړ بوط نور اثاریی معرفی شوی وای ،مګر څرنګه چې زموږ دمطالعاتو لړی په‌کرونو لوژیك ډول داریایی مدنیت‌څیړل دی ، نوموږ دلته دزمانی دتر تیب دمراعات له کبله دهغو کسانونومونه څیړوچې داویستا څخه ډیر پخوانی اوحتی دمهاجرتونو څخه هــم‌پخواتیر شوی دی او تقریباً یوزرکاله وروسته په اوستایی متونو کی یادشوی دی .

«یمی» ګڼي چې دواړه سره وروړ اوخور وو او غبرګوني پیدا شوي وو، مګر دمور په ګېډه کې لاددوی نکاح تړل شوی وه .

د«پره» کلمه دپخواني او مخکینيمعنی لري او «دات ـ ذات »دعادل او نیاومن معنی لري چې دحاکمیت مفهوم په کې پروت دی . یاپـه بل عبارت «دات» دحاکم معنی لري چې دنیاو اوعدالت مفهوم په کې نغښتل شوی‌دی چې‌ددواړو معنی لوړني عادل مشـــردی . داویستایي عقیدې له‌مخې هو شنګ د«کیانم‌ه وارینو (۱) »یا کیاني‌برم خاوند ؤ .

## یما ـ یم ـ جم ـ جمشید

په کومه اندازه چې‌داریایانو دغه لرغوني مشر شهرت لری اوحتی په دري او پښتو کلاسیکو ادبیاتو کې‌منعکس شوی اویاد شوی دی په‌دې اندازه یوهم شهرت نه لري.په ویدي‌سرودونو ، اویستا ، شاهنامو او د شاعرانو په دیوانو نوکې یـــې ډېره‌یادونه راغلې او په لږ لفظي توپیر اکثرو شاعرانو یاد کړی دی اوډېر برکات اوفیوضات یې ورته منسوب کړي دي . عامه ذهنیت اوس‌هم‌داسې‌دی‌چې یمابه جام درلود ، چې‌دهغه دکتلو په واسطه به‌دټولو راتلونکوپیښو څخه خبریده .

دا اریایي مشرپه اوستا اوویدو نوکې د«یمه» ( Yama )په نامه یادشوی‌دی اود«ښایسته» کلمه ورسره زیاته شوی ده .

په ګاتونوکې د«یما» نوم یوازې‌یو ځل‌د«یمه» په ښه راغلی دی . ګاتونه چې داویستا ډېره لرغوني برخه ده اوپه غالب ګومان پخپله دلو

---

(۱) دغه کلمه ځینو مستشر قینود«کیاني رڼا» په‌معنی ترجمه کړې ده مګر فارسي لیکوالا نو دغه کلمـــه«فرکیاني» یعنی کیاني «برم» پــــه معنـــی ترجمـــه کـــړی ده

مګردغه کلمه او مفهوم یې اوس هم‌په پښتنو کې ژوندی ده . پښتانـــه وایي چې دپلانـــي په تندی کـــې رڼاځلیږي یاوایي : دپلاني په‌وچولي کې رڼا ځلیده .ددې لنډو جملو څخه‌ددوی‌مقصد نیکي طالع او اقبال دی چـــې ذاتاً یوچاته ورکړ شوی وی اوهرکاراو پیښه دده دهیلې سره سمه سر ته رسیږي . هو= ښه . ـرینو= رڼا ـ ددواړو کلمو مجموعي معنی ښه رڼا یا مبارکه رڼاکیږي چې‌کیاني مبارکه رڼامعنی ورکوي .ددوی داکلمه یوازې دقومي مشرانو له پاره استعمال کړی ده چې محبوبیت به یې درلود او خلکو به یې متابعت کاوه .

ی مصلح زردشت له خولی پاتی شونی اثردی دیما په باره کی دنوری اویستا په خلاف تذکر کوی اوهلته یما دده دکارونو له کبله مجرم اوګنهکا ر بلل شوی دی ، ځکه چی هلته ویل کیږی «یمادخلکو دخوشحالی له پاره دغوښی خوراك مروج کړ اوبل داچې له حده زیات مغرور شو اودخپلو تعهد ونو نه واوښت . » داویستا په ابانیشت کی داسی راغلی دی :»زردشت دسوما (هوما) څخه پوښتنه و کړه په دی مادی نړی کې دلوړی ځل له پا ره چاوز بیښلی او هغه ته په عوض کی څه اجراو برخه ورکړ شوه ؟ـ سو ما په ځواب کی وویل :لومړنی انسان چې زه یی په دی مادی نړی کی وز بیښلم وی ونګهان ـ ویو نجهان دی په ویدی سرودونوکی ویـو سونت vivasvant راغلی دی )په عوض کی دجمشید پـــه څیـــر زوی ورکړ شو چې دښی رمی خاونددی . په خلکو کی دلوړی رتبی څښتن دی اودلمر په څیر ځلیږی . هغــه څوك چی دده دامارت په دوره کـی څاروی او انسانان نه مړه کیدل اواوبه او واښه دښباك اوخوراك په حیث هیڅ نه خلاصیدل . دزړه وریمادسلطنت په وخت کی نه ساړه وو اونه تودوخی وه . نړی ددیو په واسطه پیدا شوی مرګ اوکینی څخه ژغور لی وه . دده دحکومت په وخت کـی پلار اوزوی به دواړه دپنځــه لس کلنوزلمیانو په څیرښکاره کیدل . »دیما په برخه کی ویدی سرودونو اود اویستاوروستنیو برخو په افسانوی توګه یادونه کړی ده اویولړنکلو نه یی بیان کړی دی چې موږ تـــری اټکل کولای شوچی دغه لرغونی امیران ددوی دزمانی څخه هم ډیر پخواتیـر شوی دی اوددوی سره یی یوازې تصو ری انځور پاتی دی .

څرنګه چې دمخه موهم وویل چې دباختر څخه دمهاجرت په وخت کی د وی لیك نه درلود ، نوددغو شاهانو په برخه کی دهمدغو منابعو څخــه پرته نور څه مدارك نشته . دغو شاهانو په غربی اوشرقی اریایی ښاخو نوحکومت او مشری چلولی ده . نوکه موږ ددوی دمهاجرت نیټه د(۲۰۰۰ ق م) له شا اوخوا څخه دمخه وټاکو، نوددغو شاهانو دسلطنت او امارت دوره هم د(۲۵۰۰ــ۳۰۰۰ ق م) په حدودوکی ټاکل کیدلی شی . اوس ددی له پاره چی دغه موضوع پوره روښانه شی دیما باچا په باره کـی هغه مذهبی افسانوی داستان رانقلوو چې داویستا په یوی وروستی بر خی «وندیداد» (۱) کی راغلی دی .

---

(۱)ادبیات مزده سینا (۱۸۱) مخ

«زردشت داهورا مزدا څخه پوښتنه وکړه چې ای مقدسه اودمعنوی نړی خالقه !له ما څخه پرته دی دبشرپه نسل کی‌دلومړی ځل لپاره‌له‌چاسره خبری وکړی او اهورایی زردشتـــی‌دین دی چاته وسپاره . هغه وخت ورته اهورا مزدا وویل :چې ای زماپاکه زردشته !له تانه پرته می‌لومړی ځل‌دښکلی اوښی رمی خاوند جم‌سره‌خبری وکړی او اهورایی زردشتی د ین می‌ده ته وسپاره او ورته‌می وویل : ای دویو نگهان زویه ښکلیه جمه !زه‌دخپل دین له‌پاره تاتاکم اوځان چمتو کړه ! ! ښکلی جم ځواب راکړ چې زه‌ددی وظیفی له‌پاره غاړه نه‌شم کیښودلای اوددی کاروړنه یم . ددین پالنه او خپرونه زماله وسی‌پوره نه ده . ص

نوهغه وخت ماورته وویل چې‌که‌چیری زمادین خپرلو اوپاللو له پاره چمتونه یی ، نودا غوره گنم چې زمادنړی (مخلوق) پالنـــه وکـــړی اونړی پراخه اوارته کړی اودجهان‌ساتونکی اوملاتړ اوسی .نوهغه‌وخت ښکلی جم ځواب راکړ چې‌ومی منله، زه به ستاجهان وپالم اونړی بـه پراخه کړم اوتل به یی ساتنه اوڅارنه او حمایت کوم . زمادسلطنت په مهال کی بایدنه سوړ اونه تود بادوالوزی اونه دی‌مرگ اوخپگان وی .نو هغه وخت می ښکلی جم‌ته دوه‌شیان ورکړل . یو دزروغمی (۱) او بله زرینه امسا په دی توگه جم داقتدار خاوند شو .

وروسته دجم پـه سلطنت دری‌سوه ژمی تیرشول .ځمکه دوړواولو یو څارویو او خلکو اوسپیو اومرغـانواو داورد سرو شغلوڅخه ډکه شوه په دی ډول چی په‌وړ واو سترو څارویو باندی ځای تنگ شو .له هغه وروسته می جم ته‌خبر ورکړ ورته‌می وویل : ای دو یو نگهان زویـه ښکلیه جمه !

ځمکـه دوړ واو لویوڅارویو اوخلکو اوسپیو اومرغانو او داورد سر ولمبو څخه ډکه شوی ده اود وړواولویو څارویو له‌پاره ځای تنگ شوی

---

(۱) ښاغلی کهزاد دغمی پـر ځای د(غویی) کلمه راوړی ده اولیکلی یی دی‌چی «یوه‌طلایی امسااوبل داوسپنی‌غویی چې دسروزرونه جوړ شوی و » زماپه گومان پخپله په دغه فقره‌کی یو مخالفت شته چې داوسپنی غو یـی چی دسروزونه جوړ شوی و ،،، یعنی څه ؟ځکه دانه شی‌کیدلای‌چی هم داوسپنی څخه وی اودهم سروزرنه جوړ شوی وې . په اوستایی متن کی د«سوفار» کلمه راغلی ده چې د«گوتمی» معنی لری اودغلته هم تری دسروزرو گوتمی مراد دی چې دغه‌دوه شیان عیناً د سلیمان(ع)دداستان سره مطابقت لری .

دی ، نوهغه ووچی جم‌په ماسپښین‌کی درناپه لورمخه ورکړه اود لمر په‌لار روان شو . پخپل طلایی غمـی(گوتمی) یی ځمکه وسولوله او خپله طلایی امسایی ورباندی راښکله اوویی ویل :ای گرانی (دځمکی واکمنی پریښتی) سپندار مذ!مخکی شه‌اوخپل‌ځان وغوړوه چی‌تر څولوی اوواړه څا روی‌او خلك راونغښتل شی. نوځمکی‌خپله لمن وغوړوله او یوپه دریمه برخه لویه (اوارته) شوه وړو اولویو څارویو او خلکو دخپلی خوښــی سره سم ځای پیدا کړ .

دجم په سلطنت کی‌دری سوه‌نورژمی هم تیرشول .ځمکه بیادلو یــو اووړو څارویو اوخلکو اوسپیو او مرغانو اوداورد سرولمبو څخه ډکه شوه او ځای تنگ شو . جم ددری سوه‌کاله پخوا په څیر نیمه ورځ کــی در ناخواته مخه وکړه اودلمر په لاررروان شو .»

دا واقعه دری ځلی تکراشوی ده‌او په دریم ځل په آریاویج‌کی دوا نگوهی دیتا په غاړه اهورا مزداد نورواېز تا نوسره جرگه وکړه اویماد ښی‌رمی خاوند دخپلو غوره‌خلکو سره‌جرگه وکړه . نواهورا مزدا ورتــه وویل چــی ای دویــو نگهان زویــه‌ښکلیه جمه ! په مادی جهان باندی به ډیر سخت ژمی راشی او تباه کوونکی ساړه به ورسره وی . دوا ورو پوسی به دډیر لوړ غره څخه دڅوارشو (؟)په لوړوالی ووریږی . دڅار ویو دریمه برخه به مړه شی . په‌هولناکو سیمو کی (بیدیا واوکو یر ونوکی) دغرونو دپاسه په دروکی‌دژمی نه دمخه دغه هیواد ورشوگا نی لری . کله چی واوری ویلی‌شوی‌نودډیری او به به‌راوانــی شی اودا نړی داوسیدنی وړنه ښکاری . نوددی‌پیښی دراتگ لــه کبله یو باغ (واره Vara )جــوړ کــړی چی‌له هری خوا څخــه دیو اسپ دځغا ستی په اندازه اوږده (لوړه) وی.هلته دوړ واو لویو څارویو خلکو او سپیو او مرغانو أو داورد سرولمبوتخم په کی راغونډکړه . دابڼ(واره Vara )چې‌هره خوایی دیوها ســر(زرقدمونه) په اندازه وی دخلکو دا ستوگنی له‌پاره اوږده وی . هلته څرځایو نه پیدا کړه . کوډغالی (د ځمکی‌خونی) بالا خانی او کړکی‌والی‌خونی جوړی کړه . داســی سړی او ښځی هلته راټول کړه چی دځمکــی‌په مخ‌ډیر غوره او ډیرښکلی اوپی مخی وی . همدا راز دداسی څارویواو حیواناتو تخمونه راغونډ کړه چې ټوټولو لوی ، ښه اوښایسته وی .دبوټو څخه هغه چې‌ښه لوړ او ښه بوی ولری اودخورا کونو څخه هغــه چې‌ډیر خواږه خوندو روی تخمونه یی هلته وساته اوداتخمونه چې هررازوی یوه جوړه یی هلته راوړه .

تـر څو پـه هغه ټوله موده کـــې‌چې خلك په واره کـــــې او سیړ
ی دغه تخمونه وراسته او خراب‌نه شی . هغه کسان‌چې ناقص‌دی لکه
: لیونی کړوپ او پیس وی یاهغـه څوك چې‌کوم یو اهریمنی ناروغی او
افت په‌کی ولیدل شی باید چې واری‌ته را داخل نه شی . ددی سیمـــی
(بڼ) په‌لوړه برخه کی نه‌خیابانـه (کوڅی) په منځنی برخه کی‌شپږخیابا
نه او په وړه‌یا دریمه برخه کی دری خیابانه جوړکړه . دلویی اولوړی
سیمی په برخه کی یوزر نارینه اوښځی په منځنی کی شپږ سوه او په
وړه برخه کی دری سوه استوګن کړه. داګذرونه ټول په طلایی غمی پـه
نخښبه کړه او دواره له‌پاره یوورجوړکړه چی رڼا په‌کی راننوځی
جم له ځان سره سوچ وکړ چـې‌زه به څنګه دغسی واره چې اهورا
مزدا وویل جوړه کړم اهورا مزدا وویل :ای‌دویو ښکهان‌زویه ښکلیه جمه!
ځمکـه پخپلـه پونده راوګروه وروسته یی پخپلولا سونو واغږه لکـه
څنګه یی چې‌اوس خلك اغږی . نو هغه وخت جمشید لکه څنګه‌چې ورته
اهورا مزدا وویل وکړل او واره یـی‌جوړه کـړه . واړه او لـوی څاروی
خلك ، بوټی او غذاګانی یی په کی‌راغونډ کړل .»
داستان او سطیره یولږ څه نورهم دوام لری مګر موږ یی دهغی برخی
سره کارنه لرو او یوازی‌دهمدی تیروشو یو عباراتو په څیړنه اکتفاکوو:
۱ ـ ددې داستان څخه داسی وخت ا ټکلیږی چې هغه وخت دیو لوی طو
فان خبرورکول کیږی چې دنوح (ع) دطوفان سره ورته والی لری ، مګر
دنوح په طوفان کی بیړۍ دنجات‌اوخوندی پاتی کیدو ځان بلل شوی‌دی
حال دا چی دلته دیو طبیعی ماحول اواستوګنځی څخه یو مصنوعی مدنـی
حالت ته انتقال لیدل کیږی .له بلی‌خواد یما دامسا اوګوتمی افسانه د
سلیمان(ع)دامسال اوګوتمی دحکایت‌سره ورته والی لری . موږ ددغودوه
دینو نوتر منځ دتشابه ټکی لیدلای‌شو .
۲ـ ددغی وارې او استوګنځی او دیماستاینه اونمانځنه موږ په ویدی سر
ودونوکی هم‌لیدلای شوچی لنډه‌یادونه یی دمخه تیره شوه‌اودلته یی‌تکرارلا
زم نه دی .
۳ـ دغی واری ته‌که څه‌هم افسانوی‌مذهبی رنګ ورکړ شوی دی ، مګر
دایو حقیقت دی چی دهرملت لرغونی‌روایات اوحکایات‌چی واقعیت هم‌ولری
دماورأ الطبیعی او افسانوی مواد وسره ګډ شوی وی اوموږ یی دډیرو
دلایلو په موجودیت سره یوواقعیت بولو او لازم نه دی چـی نور دلایل
دلته راوړو !دمخه هم په‌دې برخه کی کافی اولازم معلومات ورکړ شوی
دی.

٤ـ ددی داستان دمتن څخه داسی‌معلومیږی چی دوی دختیځ (اریانا و یجه) څخه دغرب لورته تللی دی‌اوداځای حتماً دبلخ سیمه ده ، مگرزما پخپل گومان دغه واره داوسنی بلخ‌ځای نه وه ، بلکې دغه ځای داو سنی بلخ جنوب ته دبلخ دسیند پرغاړه داوسنی دیهدادی دکلی پرځای ؤ ، ځکه چی په اویستایی متن کی دواړې کوځی د«دیهه» په لفظ یا شوی دی چی معنی یی استوگنځی یاکوڅه ده . ددیهدادی کلمه عیناً ددادیانو (پیش دادیانو) یعنی هماغو حاکمانواو امیرانو کلی یاکوڅه معنی لری .
اوسنی بلخ دکرنی دانکشاف دورووستی پراخی مرحلی مولوددی، ځکه چې هغه وخت نه دومره وخت واونه کرنی دومره انکشاف کړی ؤ چې (۱۸) نهرونه دې وویستل شی . بلکی دا چې یمادښی رمی دخاوندپه صفت یاد شوی دی دیوې پووندەقبیلی دمشر نمایندگی کوی او دغه حکایت دکرنی او پراخو ښاری ودانیوسره دبلدیت‌دلوړنی مرحلی څرگندو نه کوی . له بلی خوا داخبره منطق‌ته نژدی ښکارې چی دوی لومړی‌په هغو سیموکی استوگنه کوله چې‌سیندبه ورسره نژدې ؤ . له بله پلوه په دغه افسانه کی دویالی اوږ دوالی زرقدمه ښودل شوی دی ، نود بلخ دسیند او اوسنی بلخ دښار ترمنځ زښت ډیر واټن موجود دی .
٥ـ ددې افسانی څخه داسی ښکاری‌چی دطبیعی‌نباتاتو په روز نه اودو حشی حیواناتو په ایل کولوکی دوی‌یو څه پرمختگ کړی ؤ اوهمدا علت دی چې دغه باغ دختیځو اریایانو په نزد چې هغه وخت یو فوق العاده ا عجازی کارؤ او دومره اهمیت یی‌درلوده چې دفردوس خطاب یی ورته کړی اوهلته دخپلو مړیو دارواگانوپه لیږ لوسپار ښتنه کوې . ددې‌له پاره چې د دوی مړی هم خوشحال وی، نو روحانیو نو به په خاصو مـرا سمو هغه ویدی سرودونه دمړی دتابوت دپاسه ویل چی دریشیانو له خوا ویل شوی اودهمدې منظور له‌پاره تخصیص ورکړ شوی ؤ .
په سمه توگه ددې استو گنځی دټاکلو په برخه کی ډیر مشکلات وجود لری ،مگر دومره‌ویلای شوچی دوی‌دداریانا ویجه څخه (چی‌موږ یی‌په ا ټکلی توگه دبدخشان کومه سیمـه یاد امو اوسیر دریا تر منځ کوم ځای گڼو) دغرب خواتـه لاړل اودا ځای‌دځینو نورو دلایلو په بنا باید حتمأد بلخ دسیند غاړه وی .
دهغه وخت داریایانو په نزد شوغرونو اوسیند ونوډیر تقدس درلود چی ټول یی داوسنی افغانستان په‌شمالی (هندوکش‌لړی) او جنوب‌غر بی برخو کی موجود دی چی مفصل‌بحث به یی وروسته راشـی ، مگر دلته دغه یوه خبره لازمه بولم چې‌د افغانستان شمالـی سیمی او جنوب

غربی برخی یوتر بله سره مستقیم ارتباط لری او داوستا دمتونو لـه مخی دا څرگنده بریښی چی دبلخ کندهار ، سیستان ، زابل اوهرات اریایانو یو تربله یوه گډه اتحادیه درلوده او ددغو خلکو تر منځ دزردشت د ظهور تروخته پورې پاخه علایق موجود وودا اټکل ښایی حقیقت ولري چې دغه سیمی دیو واحد اجتماعـیشکیل لاندې اداره کیدلی .

موږ تراوسه پورې بلخ اوباختر اریایانو دیوازینی مرکز په توگه پیژنو ، مگر زه شخصاً عقیده لرم چېدوی‌په سیستان کی یوبل مرکز هـم درلود چې دوی‌به دژمی له پاره ترې‌تار اخیست اوداسی گومان کیږي‌چې دوی به دپسرلی په وخت کی پـه منظمه توگه دخپلومالو نو سره یو ځای شمالی صفحاتوته راتلل او کله ‌ه یی چې دمنی په موسم کی خپلی ځمکی وکرلی نوبیا به دجنوب غرب ، خوا روان شول .

زه دغه ادعا ځکه کوم چی دبلخ‌و سیستان (جنوب‌غربی ټولی سیمی) تر منځ دومره روابط موجود ووچې دغه وخت داریایانو داشخاصـو او طبیعی ماحول نومونه دومره سـرډله اومخلوط دی چی ډیر پوهان یـی حیران کړی او حتی داشتباه سـره‌خامخ کړی دی . کله چې‌دافغانستان په شمالی صفحاتو کی دکوم سینـدنوم پیدا کړی او ، ځای یی وټاکی ور سره یو ځای‌بل سیند هم‌په هماغـه‌سیمه کی لټوی اوداوستایی متونود جغـرافیایی موقعیت سره چـې دوی‌گومان کړی سیند موافقت ونه لری ، نو فوراً یی حکم کړی‌دی چی دغه‌به کوم افسانوی سیند یاغروی .

زه به ددغی عقیده په رڼاکـــی‌هڅه وکړم چې دغه نومونه په همدغو سیموکی وټاکم. دیماواره) Vara په اوستایی متونوکی هم ډیر ځلـه استعمال شوې ده اودهمدې مفهوم‌له‌کبله دوی یو خاص ایزت (پـرښته یارب‌النوع) ته عقیده لرله او په‌اوستاکی خشترئیر یه ( Xsathra Vairya )یاد شوی دی چی معنی‌یی ښکلی هیواد او ښایسته مملکت دی . دایوتل ترتله اهورایی ملـک‌گڼل شوی اوعالی جنت بلل شوی دی، تردی پورې چې دوی عقیده درلوده‌چی هغه داهورا مزدا اوپرښتگانو ټا ټوبی دی .

دهمدی ایزت په قدرت کی خدایی‌عزت اوشاهی جلال دی ، همدغه دفلزاتو ساتونکی او دعدالت حامی‌بلل کیده .

دیما یاجمشید په برخه کی طبری‌هم ډیر څه ویلی دی ، مگرد افسانی حیثیت لری .

مگر موږ دموضوع دارتباط لـه مخی دغه یوه فقره یی رااخلو چی‌یما دضحاك (داوستاآژی دهاك) له لاسه ژوبل شو اوپه تیپی صورت زابـــل (زاول) ته وتښتید او دهغه ځـای‌دباچا لوریی وکړه اودهغی نه یی زوی پیدا شو . په‌پای کی وایی چې یمادزابل باچاهم وشاړه اودچین دسیند په غاړه دضحاك لښکر ودیوې ونــی‌په ډډکی پیدا کړ اودسپیتورا (سپین توری) نومی شخص له‌لاسه ووژل‌شو. یا په‌اره باندې دونی سره یوځای اره کری شو . موږ اوس دلته دهغونورو اریایی مشرانو اوهغو غیر اریا یی واکمنانو یادونه لازمه گڼو چی‌داریایی تمدن په تعمیری یا تخریبی برخه کی یی اغیزه درلوده .

## ضحاك ـ یاآژی دهاکـــه

لکه څنگه‌چې په اریایی یاد داشتونواو اساطیروکی دیما نوم افسانوی بڼه پیدا کړې ده ضحاك دویم شخص دی‌چې دیما او داریایانو دتمدن اوکلتور دیو مخالف عنصر په توگه افسانوی‌حیثیت پیدا کړی دی چې کله یی‌ور ته داژدها خطاب کړی اوکله یی داهریمن یو فاسد استازی بللــی دی . په لنډ ډول‌ویلای شو چی ددغــه شخص دمنسوب قوم له لاسه یو ځل دیما په‌وخت کی اریایی تمدن ړنگ‌شوی اودغه اریایی ټولنه تالا ترغی شوې ده . ځینو مورخینو دغه شخص‌اوقوم یی غربی ، چاکلدانی ، چاآشو ری او ځینو کردان بللی دی . کــه‌چیری ددې شخص په باره کی دمور خینو ټول نظریات راغونډ کړو نوموضوع بلی خواته ځی‌او ډیر اوږدوا لی مومی مگر زه‌پخپله عقیده لرم چی‌دهمدی سیمی دکوم بومی قوم رئیس او مشرو چې اریایان ورسره دیما په‌وخت کی دور شوگانو دپر اختیا په مسئله کی دخونړی اختلاف سره مخامخ شوی دی . له بلی خواد زابل باچا ته دیما پناه وروړل سړی تــه دوه‌نکتی ورپه گوته کوی :

۱ـ دیما په وخت کی په اریایی‌نورو قومونو کی ځای پر ځای واړه ځمکوالی مرکزونه موجود وو اویماخپلو قومی قوتونوته پناه وړی ده .

۲ـ دزابل دنوم‌څخه داسی ښکاری‌چې دغه جگړې‌دافغانستان په جنوب غربی برخوکی پیښی شوې دی او زموږ پخوانی خبره تحقق مومـــی .

په اوستایی متونوکی دضحاك ځای(بوری Bawri )ښودل شوی دی اوخلکو ترې بابل یابا بیلون جوړکړی دی . مگرزه عقیده لرم چی دغـه بورې بابل نه دی بلکی داوسنــی‌بلوچستان سیستان ته نژدی کومه

سیمه ده . ځکه په دغه سیمه کې داریایانو څخه لاپخوایو مدنیت موجود واو اریایان دپر دیو اوغیـر بومـي خلکو په څیر هلته ورغلی دی .که څه هم زه پوره عقیده او کامل موادپه لاس کې نه لرم ، مګرګومان کوم چې اریایان ډیره موده له دغوځایونو څخه بیرته راشړل شوی اودفریدون تر عصره پورې بیا هلته تللی نه دی ، مګر کله چې فریدون یاتریتو نه د قدرت خاوند کیږی نو دغه بومي قبایل دافغانستان دجنوب او غرب څخه شړی او پرځای یې اریایي اقوام بیرته میشته کیږی .

له بلې خواپه بنداهش کې دفریدون دنسب سلسله داسې یاده شوې ده چې په لسم پښت کې یما ته رسیږی او دهغه مسقطا لراس او دزیږیدلو ځای دخزر دبحیرې جنوبی برخې بـولی . نوکه دغه نسب نامه اود مسقط الراس دټاکلو ځای حقیقت ولری ،نواټکل کیږی چې اریایي قبایل دنورو بومي قبایلو له لاسه تقریباً (۳ـ۲)سوه کاله دجنوب څخه بیرته دشمال په لور مهاجرت ته مجبور شوی اوبیادفریدون په عصر کې بیرته مرکزې اریایان دجنوب خواته مهاجرت کوې او خپلوپخوانیو ورشو ګانوته رسیږی او دخپلو فتوحاتو لمن لاپســی اوږدوی .

**فریدون :**

په اوستاکې دغه نوم دتری تونا Trae-tona )په نامه یادشوی دی او بیا وروسته ورڅخه فریدون جوړشوی دی . ښاغلی احمدعلی کهزاد دغه شخص دپیشدادې دکورنی څخه ګڼلی دی او وایي چې دیما څخه ورو سته پــه پیشدادې سلطنت باندې کښیناست .

ددې شخص اهمیت له دې کبله زښت ډیردی چې دهغیر اریایي عناصر داریایي قلمرو څخه ویستلی او داریایانو پخوانی برم یې بیرته راژوندی کړی دی .

ده دزیږیدلو ځای د(ورینه Varena په نامه یاد شوی دی چې ځینــــو مستشر قینو دغه ځای دیلم یاګیلان بللی دی . په پهلوی کې دغه ځای (ورنیك) یاد شوی دی مګر زه ګـومان نه کوم چې ورینه یاورنیك دی له بلخه دومره لیری پروت وی .که څه هم ددغه ځای ټاکل یو مشکل کار دی . مګر دومره ویلای شو چې دغه ځای بایدد بلخ دسیند جنوب اویاجنوب غرب خواته کوم غرنی ځای وی اود بلخ دولایت دالبرز دغره په جنوبی لمنوکی دکومی سیمی نوم وی .

## گرشاسپ :

دبندهش دروایت له مخی (۱)گرشاسپ په اووم پشت کی فریدون ته رسیږی او بیا ددغـی کورنـی دسلطنت ځای زابلستان ښیی . دغه لړی چې درستم نیکونه دی په پای کی یی دنسب شجره یماتـه رسیږی .ددې شخص داسلافواواخلافو دنومونو سره د«سام»او«نریمان»کلمی هم‌راو ړل کیږی . لکه سام گرشاسـپ ،رستم نریمان اوداسی نور .

دغه شخص هم دپیشدادیانو له‌جملی څخه گڼل شوی دی اودمـزده یسنا په حواله په وندیدادکی دگرشاسپ ، پلار دیوپاخه طبیب او دار وگر په توگه ښودل شوی دی . په‌اوستایی متونوکی دگر شاسپ پلارد «تریته Tritta»په نامه بلل‌شوی دی. وایی چی تریتا دریم سړی دی چې دسوما شراب یی جوړکړل ،نو په عوض کی ورته دوه زامن ور کړل‌شول‌چې یواوروا خش Aurvakhsh نومیده او قانون جوړ وونکی اوډیرهوښیار شخـص و . دده قوانین به په اجتماعی سلوك کی عملی کیدل‌او بل زوی‌یی همدغه گرشاسپ دی چی زړوراوښکلی‌و.اورواخش‌د گومان‌له مخی دوخت دباچاهیتاسپ له خوا وژل شوی دی اوگرشاسپ همدغه باچاد ورور په کسات وژلی اوپرځای یی ناست دی . هیتاسپ دطلایی تاج‌خاوند بلل شوی دی .

دابان یشت په یوه فقره‌کی داسی راغلی دی چې «گرشاسپ نریمان دپیشینگه سیند پـر غاړه داوبودرب‌النوع اناهیتا یا ناهید له پاره سل اسونه ، زرغوایان اولس زره پسونه قربانی کړل چې‌تر څوپه «گندروه» طلایی ښنگری باندی دواوروکش دسیند پر غاړه غالب شم .....»

دفردوسی په شهنامه کی گندروه‌دگندرب په املا راغلی دی اودضحاك وزیر بلل شوی‌دی . موږ دپورته څوجملو څخه دغه نتایج اخیستلای شو چې په لنډ ډول ویل کیږی .

۱ـ دبلخی پیشدادیانو استوگنځی‌یوازې بلخ نه ؤ ، بلکی دافغانستان په جنوب غربی او غزنی برخوکی یی‌هم خپل قدرت ټینگ کړی واو زموږ دتیرې یادونی له مخی د دوی دژمی‌یا په بل عبارت دنیمایی کال استو گنځی ؤ .

۲ـ دغه وخت دغه ټولنه اوقوم‌دتمدن یوې داسی مرحلی ته رسید لی وه چی تجملی وسایل هم په کـی‌عام شوی او رایج شوی وو او پـه

---

(۱) ادبیات مزده یسنا ـ۱۹۸ مخ

سیاسی او اجتماعی لحاظ یی پوره پرمختګ کړی ؤ . دقانون دجوړ لو او اجتماعی اصلاحاتو له پاره یو خاص ضرورت پیدا شوی ؤ . له دې څخه داسې ښکاری چی په مذهبی اصولواودینی قوانینو برسیره دوی یو شمیر نورو قوانینوته هم اړتیا پیدا کړې‌وه او اورواخش ښایی‌دیو مقنن په تو ګه دهیتاسپ باچا دخپل سریو اوعیاشیو په لارکی خنډشوی وې اوهیتا سپ دهغه وژلو ته اقدام کړی وی. که څه هم هیتاسپ یو لوی اریایی مقنن وژلی دی ،مګربیاهم‌په هیڅ‌ځای‌کی دده غندنه نه ده‌ویل شوې ، نو له دې څخه داسی ښکاری چې هیتاسپ‌هم دپیشدایانو له جملې څخه ؤ او ګرشاسپ ته‌دخپل اقتدار دلوړ ولوله‌پاره دوروردمرګ یوه ښه پلمه په لاس ورغلی وه، اوپه پای کی‌یی‌هیتاسپ وژلی او داریایی ټولنی مشری یی خپل ځان ته کړې وه .

۳ـ څرنګه چی دلته موږ دګندروه‌مقام اواستوګنځی دسیستان دهامون (واوروکش) پرغاړه ګورو اوله بلی‌خوا دغه شخص دضحاك وزیریادشوی دی . نو موږدضحاك‌په برخه کی‌داسی‌فکر کوو چی ګندروه اوضحاك دواړه ددغی سیمی دبومی قوم مشران او حاکمان وو ، نوکه چیری دغه اټکل‌سم وی ، ضحاك دیوغیر اریایی قوم باچامشرو چې نه عربی نه کلدانی اونه دبابل اوسیدونکی اود (بوری) سیمه‌هم داوسنی افغانستان په جنوب غر بی سرحدی برخه کی دکوم ځای نوم‌ؤ چی‌دسیستان دغدیر سـره نژدی موقعیت لری .

له بلی خوا په‌ښکاره توګه په ابان یشت‌کی راغلی دی چې ګرساسپ دپیشینګه سیند پـه غاړه داناهیتا (ناهید) له‌پاره لویه قربانی اونذرو کړ ، نود پیشینګه نـوم اوس هـم‌دپشین یا پیشین ( Pshin په نامه ژوندی دی اویوه لویه صحراده چې‌سوریی (۵۰) کیلومتره او طول یی تقریباً (۸۰) کیلو متروتـه رسیږی‌او دمالونو دپوولوله پاره‌یوه‌غوره‌ور شوده .

ګرشاسپ په اوستایی متونوکی‌ډیـر ښکلی اودیو خارق‌العاده زړور او پهلوان انسان په څیر ښودل‌شوی‌دی . ددې باچا دسلطنت حدود ترکا بله پورې رارسیدلی وو اوپه کابل‌کی دیوې ښایسته‌ښځی دعشق په‌دام کی کښیوتلو قصـه یی په اوستـایی متونوکی راغلی ده.دکابل پخوانی نوم په اوستاکی (واکرته) یاد شوی‌او په پهلوې کې‌دغه نوم په کاپول ترجمه شوی دی .

دغه دارایانو خارق‌العاده مشـر بیرته په پشین کی دیونفرلـه خوا

وژل شوی او هماغلته پروت دی اودوی عقیده درلوده چی کلـه ضحاك بیارا ژوندی شی ، نودوی به ورسره‌سم راژوندی کیږی او بیا به‌یی وژ نی گرشاسپ مجموعاً پنځه خارق‌العاده کارونه سرته رسولی دی چې‌دیو نان دهرکل ( Heracies )دکارونوپه څیر دی .

دغیر اریایی قبایلو سره دجنگونو نه وروسته دمرکزې باختر یانو یولړ شخړې دنورو اریایی قبایلـوسره هم راغلی دی او وروسته دغه اریایی قبایل دبلخی یا باختری دولت‌ډیر کلك سری رقیبان بلل شوی دی . په اوستایی اوپهلوی متونوکی دغه ټول‌قبایل دتورانیانو په نامه بلل‌شوی دی . دغه دتورا ــ یاتوران نوم دزردشتی عصر دنومونو څخه دی چی په مذهبی لحاظ یی دغیر زردشتی دیـن‌دپیروانو له پاره ټاکلی دی . ټـول هغــه قبایـل په دغــه نـوم یادشوی دی چـی زردشتـی دین یـی منلی نه ؤ . ځکه‌چې مورږــه تیروپانوکی ولیدل چې دبلخ پیشدادیانو د سیستان سره نه شلیدونکی علایق‌درلودل اودسیستان ښار دسیستان دتا ریخ په حواله گرشاسپ جوړ کړی‌دی اودغه خلق دبلخی قبایلو نژدی عزیزان او خپلوان وو ،مگرکله چې‌دگشتاسپ په عصرکی دزردشت ددین دعوت نه منی‌نودوی‌هم دتورانیانوپه نامه یعنی دغیر زردشتی یالرغونـو عقاید وپیروان بلل شوی دی .

که څه‌هم ځینو مورخینو د بلخ‌دولت یوه لویه امپراتوری بللی‌ده او حدود یی په ډیرو لیرو سیموکی‌ټاکی اوبلخ دیوی منظمی امپراتوری مرکز بولی ، مگردغه لیکنی او افکارداوستایی متونو دمطالعی له مخی‌کوم حقیقت نه لري ، ځکه چې په هغــه‌وخت کی لا اریایانو د اجتماعـی ، ا قتصادی او سیاسی اړخونو له خوادومره پرمختک کړی نه وچې یوه لویه امپراتوری تشکیله کـړی بلکـی دپیشدادی او کیانی باچایا نو عصر یو داسی وخت وچې دوی په سلوکـی‌ترپنځوس زیات مالدارن وو اوځـای پر ځای یی واړه ملوك‌الطوایفی قوتونه او تشکیلات جوړ کړی وو چې موږیی دمعلوماتو دنشتوالی له کبله‌پوره شمیرلای نه شو مگر دومره و یلای شو چې داموسیند .نه پورې هم‌دوه دری وړې باچهی وې اودبلخ نه پرته دافغانستان په جنوب غرب اوشمال غرب کی نور قبیلوې لوی قو تو نه موجود وچې دبلخ د دولـت‌رقیبان وو .

# افـــراسیاب

افراسیاب هم داریایانو یومشهوراو قوی شخص ؤ چې‌دکیانی یاکاوی کورنی ډیرکلك او شدید رقیب ؤ .دا شخص په اوستایی متونو اوشاهنامه کی تورانی بلل شوی دی . پـه څینو نسب لیکنوکی دی دفریدون له نسلـه ګڼل شوی دی مګردا دنسب‌شجره یوڅه افسانوی رنګ لری او حقیقت تری لاس ته نه راځی .

بیا هم دوه نکتی زموږ مخی ته‌ودریږی – لومړی داچې په مرکزی اریایانو کی انشعاب راغلی اودوه برخی‌شوی دی اولکه څنګه چې دمخه موو لـــیدل چـــی هیتاســـپ دګـرشـاســـپ لـــه لاســـه و وژل شو او سلطنت یی ونیو نوموړ لـه‌دغه ځایه داریایانو په منځ کـی د اختلافاتو نښی او بیلګی ګورو .ښایی‌چې‌دغه اختلافات داخلی‌وی‌اودمرکزی اریایانو دمتمدنو او کوچی قبایلو ترمنځ شخړې پیښـی شوی وی .

دویم داچې ددوی دګاونډیو عزیزانو قبایلو او بلخی دولت تر منځ ډیر کلك اختلاف پیدا شوی وی اودغه اختلافات هم اکثرأ داقتصادي موضوع ګانولکه ورشو ګانو ځمکو یا حیواناتو څخه را پیدا شوی وې

بده نه ده چې دغه موضوع داوستایی اوشاهنامودمتن له‌مخی وڅیړو. په اوستاکی دافراسیاب نوم فرنګرسینه ( Farangra Saena)راغلی دی په پهلوی کی فراسیاك اوپه شاهنامه کی افراسیاب ذکر شوی دی. که څه هم موږ دافراسیاب اوکیانی‌کورنی دجنګو نودځای اود افراسیاب داستو ګنځی ځایونه په دغه‌وخت کی‌پوره تاکلی نه شو ، مګربیاهم دځایو نو هغه نومونه له نظره تیـر ووچې‌په لرغونی متونو کی یاد شوی دی .

دافراسیاب استوګنځی د «کنګ‌دژ»په نامه یو ځای کی ښودل شوی دی اوبیا وروسته دکیانی کورنی دلښکروله لاسه د «خنجست – چه چست» دسیند په غاړه نیول شوی او وژل‌شوی دی . اوس به وګورو چی دغه ځایونه چیری دی .په اوستایی لرغونو او وروستنیو متونوکی دافراسیاب او سیاوش (سیاورشن) دجګړو ځای‌پر ځای ذکر راغلی دی‌اویو ځای‌داسی هـم ویل شوی چـی دسیاوش زوی‌کیخسرو هم دده له لاسه په جګړه کی نیول شوی او بندی شوی ؤ.پلاریی سیاوش دافراسیاب له لاسه‌وژل شوی دی .

دځینو مستشر قینو او ایرانـی‌لیکوالو په منابعو او اثارو کـــی د «خنجســـت» سینـــد دارمـــه په‌نا مـــه بلـــل شـــوی دی . اوداوسنی ایران په خاوره کی یـی‌بللی دی مګر دکنګ دژد ځای په تا

کلو کی حیران شوی او هغه یی پـه خوارزم کی ګنهلی دی .

حال دا چې غـــه دواړه نومونه اوس هم په افغانستان کی ژوندی دی او که دهغو مبالغو څخـه تیرشو چی په پخوانیو متونوکی یی د«کنګدژ» یا «خنجست» دسیند دعظیم ښودلو له پاره راوړل شوی دی نو دوه احتماله موجود دی .

۱دغه کنګ دافغانستان په جنوبغربی برخو کی دکوم ځای نوم‌دی چی هلته کومه شاهی ودانی جوړه شوی‌وه.ددژ، دیز،دیس،ویس. کلمات‌دو دانی معنی لری . پـه غه نوم اوس‌هم دنیمروز په ولایت پورې مربوط یوه اولسوالی شته چی کنګ بلله کیږی اودغه لرغونی‌نوم یی‌تراوسه پوری ساتلی دی . څرنګه چې پـــه تیرو مخونوکی موولیدل چې دمرکزي اریایانو داستوګنی یـو مهـم ځای دسیستان فـراه نیمروز او کند هـار جنوب غربی سیمی‌دی دغه اولسوالی‌دخاشرود دسیند په څنګ کی ده .نو دلته موږ اټکل کولای شو چی دغه‌ودانۍ په همدغه کنګ کی‌وه او د خنجست یا چنجست دسیند څخه همدغه دخاشرو دسیند مقصددی ، یاپه بل عبارت دخاشرو ددسیند پخوانــی‌نوم خنجست دی .

کیانی سلطنت پردغه ځای مسلطؤ اوهمدغلته یی کومه شاهی ودانی لرله چې یو تر بله یی‌سره ډیره فاصله په منځ‌کی نه وه ،ځکه چی‌په لرغونو متونوکی داسی راغلی دی چې‌دکیخسرو لـه لاســه افراسیاب و تښتید اوپه یوغارکی پټ شو، مګریوسپین ږیری عابدولید اوهغه دکیخسر وافسرانوته خبر ورکړ اوهغوی فورأراغلل او افراسیاب یی ونیو اودسیا وش په کسات کی یی مړ کړ .

دویم احتمال دادی چې کنګ دژداوسنی کندز لرغونی نوم وی چـې لکه دمخه موولیل چې دغــه ځای دساکی قبایلو معبرو . نودلته ساکی قبایلو کومه وړه پادشاهی لرله اودپامیر دغرونو لړی او ورشوګانو تــه دمرکزی اریایانو دمالـو نو او خلکوخنډ شوی دی . ښایـی دغلته کوم قوی شاهی بالاحصار موجود و چې‌دافراسیاب له تیښتی نه وروسته دکیا نی سلطنتی کورنی لاس ته ورغلی‌دی . لکه څنګه چې دیما (وارې) د دوی په نزد دجنت حیثیت درلود په همدې ډول دغه کنګ دژهم ددوی‌په نظر یوارض موعود اودجنت په شیردښکلی ځای په توګه تقدس درلود. ښایی ساکی قبایل داموسیندچې ددوی‌تر منځ یوطبیعی سرحدو راتیر شوی او دغه ځای یی نیولی وی .

له بله پلوه دخنجست کلمـه اوس هم دخنجان په بڼه موجوده ده او همدغه دخنجان سیند دی چی کندوز ته رسیږی . امکان لری چې لـر غونی کنګ دژ داوسنی کندوز څخه‌شو میله لری ؤ . په تاریخ طبـری

اود فردوسی په شهنامه کی‌دغه پیښی‌ډیری مفصلی راغلی مگر افسانوی بڼه لری .

## کیانیان ــ یاکاویان

دکاوه ــ یاکوی کلمه په ویدی‌سرودونوکی هم راغلی ده او مقصد تری هم دغه کورنی ده اودکیکاوس‌نوم په «کاوه یوسانا» یادوی .داسی بریښی چې لاپه په دغه وخت کی‌هم‌ویدی او مرکزی‌قبایل سره جلاشوی نه وو .

دلرغونو متونو څخه داسی ښکاری چې دغه کورنی دافغانستان په جنوب غربی سیمو ، غالباً دکندهارشا اوخوا سیموکی اوسید له . ددې سلسلی موسس کیقباد دی چې پـه اوستاکی د«کاوی کواتا» په بڼه یاد شوی دی . دکیقباد یاکی کوات په برخه کی چې څنگه باچهی ته ورسید داسی افسانه موجوده ده . کی کوات‌دالبرز دغره (دمزار اوبلخ‌جنوبی‌غره) په لمن کی خپلی رمی پوولی او دډیرو مالونو خاوند ؤدده په وخت کی بل‌باچا نه ؤ . ښایی چې په‌دغه وخت‌کی اریایی تاج اوتخت تش پاتی وو، نوددې احساس کیده چې دوی بایـدیو واکمن او مشرو لری .ددې له‌پاره چې دده سلطنت ته روحانی بڼه ورکړی ــ نـو داسی افسانوی روایت دی چې یودوه سپین بازونه راغلل‌چې یود سروزرو تاج‌یی په منگو لو کی نیولی ؤاودهمدی غره‌په لمن کی‌یی دکی کوباد په سربانديې کیښود . نور شپانه پری راټول شول اودی‌یی‌په بلخ کی‌په پاچهی وټاکه دغه دبازا نوراتگ اودتاج راوړل یوخدایی لطف بلل شوی اوپه اوستایی متو نوکی د«کیانم هوارنیم» په نامـــه ملقب شوی چی معنی یی «کیانی‌غوره رڼا» ده چې هرچاته نه حاصلیږی .دغه اصطلاح اوس هم په پښتنو کی ژوندی ده اوهغـه څوك چـی دشان‌او برم خاوندوی نوداقبال او طالع‌او بخت خاوندیی گڼی او وایی چې په‌تندی کی یی رڼا ځلیږی یعنی دبرم شان اوشوکت خاوند دی .

په دې‌افسانه کی‌دوه‌ټکی‌ډیر مهم‌دی . یودا چې تردې وخته پورې ښاری او پوونده ژوند سره ډیر جلاشوی‌نه وو او دښاری اوکوچی قبایلو تر منځ کلك اجتماعی اړیکی موجود وواو یو شپون هم باچا کیدلای شو .

دویم داچې په اقتصادی لحاظ ددوی ژوند دومره پر مختگ کړی نـه وچې‌یوه ځانگړی متکی پر نفس ښاری ټولنه منځ ته راشی اود کلیوا لی کوچیانی ژوند څخه مستقلـه اوجلا وی .

ددې کورنۍ دباچهانو نور نومونه هم‌په پخوانیو متونوکې ذکر شوي دي مګر دومره شهرت نه لري ښایي چې‌دقبایلي اړودور له کبله ددومره قد رت خاوندان شوي نه‌وي . په دوی‌کې یوازې دکې کوباد لمسی ، یعنی کی کاوس دشهرت خاوند شوی دی‌اوپه ویدی‌سردونوکی‌هم«کاوه‌یوسا» یاد شوی دی .

په ابان یشت کـې داناهیتا رب‌النوع له‌پاره دارزیفیه غره دپاسه دده قرباني یاده شوې ده او ددې قرباني په عوض کې يې ورځخه دباچهی قدرت غوښتنه کړی‌اواناهیتا هم‌دده‌دا غوښتنه ومنله اودی د«هوورینو» خاوند شو .

ارزیفیه ښاغلی‌کهزاد دالبرزکومه ځوکه ګڼلی ده ، مګر زه عقیده لرم چې ارزیفیه د«ارزهی» دولایت‌غردی . ارزهی دارغونو متونو دجغر افیایی موقعیت له مخې اغلبأ ارزګان‌دی چې دزماني پـه تیریدو سـره د «ارزهی» مفردشکل څخـه دارز ګـان‌شکل جوړ شوی دی .

## کاوی سیاورشن
## یا
## سیاوش

دغه شخص دکیکاوس نه‌وروسته‌دمرکزي اریایانو باچا شـوی دی او ګومان کیږی چې دی بـه دکیکاوس‌زوی وي . هم‌دغه شخص چې دکنګ دژمانهی ورته منسوبه ده او داساطیروله مخې ده جوړه کړې ده چې بحث يې دمخه تیر شو . افراسیاب دغـه‌مانۍ په زور نیولی ده‌او سیاوش‌دده له لاسه وژل شوی دی . لکه چې دمخه موویلي دي هغه اریایان چې د تورانیا نو په نامه یادیدل د بلخ ددولت په نسبت په کلتوری لحاظورو سته پاته وو،مګرد بشری اوقبیلوی‌قدرت له مخې هیڅ کم نه وو ،بلکې دبلخ ددولت رقیبان اوددوی په‌څمکویی تعرضونه هم کول . دافراسیاب او سیاوش په عصرکې ددغو قبایلوسخت مخالفتونه لیدل کیږي . کـه څـه هم ښاغلی کهزاد او پور داوددواړه په دې عقیده دي چې دکنګ دژمانهی دامود سیند په شمالي سیمو، یعنی اوسنی خیوه کې وه ، مګر زه عقیده لرم چې دغه مانهی داوسنـی‌افغانستان په داخلی حدودوکی وه‌او بحث‌یی دمخه تیر شوی دی .

## کاوه هوسر اوا ـ یا کیخسرو

دا شخص دسیاوش زوی او هغه کس دی چې دافراسیاب تورانی څخه یې دخپل پلار کسات اخیستی دی اوافراسیاب یې دخنجست سیند په غاړه نیولی او بیایې وژلی دی . ددغه باچا په وخت کې داریانا حدود وپراختیا موندلی ده او تورانیان یې دهغو ځایونو څخه شړلي دي چې دسیاوش په وخت کې یې نیولی وو . اوپه اریایی اساطیرو کې دپوره شهرت خاوند دی.

په یشتو نوکې ډیر ځله دده نـوم یاد شوی دی اودا ناهیتا ربالنوع له پاره دده بـې ساري قربانی ډیرې ستایل شوی دی .

په اوستایی یشتو نوکې ځای پرځای دده قابل رقیب د«ویسه ویساك» زړور زامن یاد شوی دی اوښایی چې ددغی کلمی څخه مقصد «ساك» قبایل وی چې دمخه مووویل چې د«پارتیانا» دسیستان او افغانستان جنوب غربی پوونده قبایل او دامونه پورې غاړه ځینی اقوام دوی د«توران» په نامه یاد کړی دی او خپل مخالفین یې بللی دی . دغه قبایل ځای پر ځای محلی او سیمه ایز حکومتونه جوړ وی اوکله ناکلـه دلوی قـدرت خاوندان شوی دی ، مگر دغه ددوی دقدرت عصر ډیروروسته دی او موږ اوس ورسره کارنه لرو .

### تبصره .

څرنگه چې دکیانی کورنی څخـه وروستـه دباختـر ددولت واکـی د «اسپه کورنی» لاس ته ورځی اودهمدې کورنی دیو باچا پـه عصر کې یو مذ هبی ریفورم منځ ته راځی چې بانی یې دبلخ ستر متفکر اولوی ریشـی زردشت و اودایوه لویـه کلتـوری پیبنـه ده ، نو خپل لومړی ټوك پـه همدی ځای بس کوم او دغه مهمـه موضوع په دویم ټوك کې په مفصل صورت سره راځی .

ماخذ ونه :په دی کتاب کې ددغواثارو څخه استفاده شوی ده :


۱ ـ گاتها : دپور داود تالیف او تـرجمه تهران ـ ۱۳۲۹ کال

۲ـ ادبیات مزده یسنا دپور داود تالیف او ترجمه

۳ـ د«ایران توده» مجلی «٤ـ ٦ـ ١٦» گنهی

٤ ـ بررسی هایی دربارهٔ برخـی ازجهان بینی ها وجنبش هاي اجتماعی در ایران ـ داحسان طبری لیکنه .

٥ ـ گزیده سرودهـاي ریگویدا ـ دسیدمحمدرضا جلالی ترجمه ۱۳٤۸ تهران

## داروا ښادخیرمحمد سادلنډه پیژندنه

اروانباد خیږنمل خیرمحمد ساد دسالو خان زوی په (۱۳۱٦) ه لمریز کال کــی دننګرهار ولایت دشینوارو دهسکی مینی دولسوالی دپاپین په یوه غریبه اوبی وزلی کورنی کی د دنیاپر مخ سترګی وغړولی ، لومړنی زده کــړی یـــی پـــه ۱۳۲٤ هـ.ش کال کی دننګرهار ولایت دشینوارو د هسکی مینی دولسوالی دپاپین په لومړنی ښوونځی کی پیل او په (۱۳۲۹) هش کال ترینه فارغ شو. په (۱۳۳۱)هش کال دکابل په دارالمعلمین کی شامل او په (۱۳۳٦) هش کال کی په یوه عالی درجه کی ځینی فارغ شو.

له (۱۳۳۷) څخه تر (۱۳٤۱) هش پورې یی دابن سینا په لیسه کی دښوونکی په حیث دنده تر سره کړیده ، په (۱۳٤۲)هش کال کی داد بیا تو او بشرې علومو په پوهنځی کی شامل او په (۱۳٤۵) کی یی دنوموړی پوهنځی له پښتو څانګی څخه لیسانس ترلاسه کړې دې .

له پوهنځی څخه تر فارغید و وروسته دهماغه کال ددلوې په لومړی نیټه دننګرهار دښوونی او روزنــی مدیریت ته دښوونکی په صفت ورمعر فی شو ، په (۱۳۵۲) کال کی دپښتو ټولنی دادب اوفلکور په مدیریت کی دمسلکی غړې پــه حیث مقــرر ، د(۱۳۵۵) کال په پاې کی اروانبادساد دکابل مجلــی دمرستیال په توګه اوپه (۱۳۵٦) کال کی دنوموړې مجلې د مدیر په حیث وټاکل شو. په (۱۳۵۷) کی دښوونی او روزنی په وزارت کی دتألیف اوترجمی دریاست مرستیال اوپه (۱۳۵۸) کی دتألیف اوترجمی دریاست چارې ورپه غاړه شوې . د(۱۳٦۰)کال په نیمایی کی اروانباد سادد خپلی علمی مینی لــه املــه بیرته دافغانستان دعلومو اکاډمی ته راغی او د پښتو څیړنو دبین المللی مــرکز دریسرچ په څانګه کــی دمسلکی غړې په حیث ومنل شو چی دمرګ تروخته یی په ډیره علمی حوصله خپلی ور سپارل شوې دندې پر مخ بیولی ،خوافسوس چی د (۱۳٦۱) کال دمیزان د (۲۵) شپی په نهو بجو دمرګی ناوړه ناتار زموږ دغــه (٤۵) کلــن ځوان

محقق او دټولنيز درد خاوند ليکوال، دعالي اخلاقو خاوندله موږه بيل کړ
او زموږ دعلمي او ادبي اسمان يو ستوري دتل له پاره ولويد او په
کابل کې دانقلاب دشهيدانو په سپيڅلي هديره کې خاوروته وسپارل
شو.

اروانباد سادپه نيکو اخلاقو سمبال او بااستعداده ليکوال وهغه ليکوال
چې دانسان ازادي ته يې ژور احترام او درناوې درلود او يواځينې هيله
يې داوه چې په ټولنيز ژوندکې دانسان ځورونې منحوس او استثماري
قانون ملغي اوپر ځاې يې دبشريږښيگڼو ساتونکې ښايسته قانون
مجري وي . دده په نظر هغه ټولنه سعادت له رنگينيو څخه خوند اوکيف
اخيستلاې شي چې يوپه کې دبل دسعادت هيله ولري اودنورو په نيکمرغی
کې خپله نيکمرغي ولټوي .

اروانباد ساد دافغانستان دخلکدموکراتيک گوند داصلي غړيتوب پر
افتخار سربيره دگوند او دهغه دارمانونو يو تکړه او فعال ممثل هم ؤ
. دې په خپله يوله هغوکسانو څخه ؤ چې دتيرو فاسد واوناوړ ورژيمونو
سره ژمودير زوروولی و . ده کوښښ کاوه دهغوبد مرغيو پاې ووينی کوم
چې په کلونو کلونو يې زموږ رنځيدلی ولس رنځولی وده له هغو
خلکسره کلکه مينه درلوده چې دتريخور استعمار رټلي بې واکه اودبد
مرغي په وژونکې لومه کې يې ښکيل کړي وو . ده دهغو انسان وژمه
استثمار گرو پرضد کلکه مبارزه کوله چې په ميليو نونو انسانان يې د
خپل نه مړيدونکې حرص قرباني کړې ؤ اودنيستي تباهي ناروغی ، فقر ،و
یر او غم سره يې اشنا کړې ؤ . ده حق پاله او ددې مقدسی لارې يو
کلك لاروي ؤ نه يوازې لاروی ،بلکې په دې سفرکې يې نور هم داسې
وربلل : «اوس هغه وخت رارسيدلی دې چې حق زوردي» له پاره کلکه مبا
رزه وشی اودغه جمله په کلی ټوگه دتاريخ موزيم ته وسپارله شی چې
ويل به يې «زور حق دې»

اروانباد ساد درې زامن او دوه لوڼی لرې چې مشر زوې يې په (۱۳۶۲)
کال کې دطب له پوهنځي نه فارغ شوي دې او کشره لوريې په شپږم
ټولگی کې دہ .

دافغانستان دعلومو اکاډمي دپښتو څيړ نو بين‌المللي مرکز په دا
سې حال کې چې داروانباد ساد دحق پالني درناوې کوې دده مړينه يوه
لويه اونه جبران کيدونکې علمي ضايعه بولي او په دغه علمي ميراث چې
ديوه کتاب په توگه ورڅخه پاتې شوي دې دزړه سود کوي.
ښاددې وي دمرحوم ساد پاك روح .



